# د پښتو اشتقاقونه
# او
# ترکیبونه

مؤلف

صدیق الله رښتین

1

**د پـ تو ولنـ د خپرونـ لمبر (81)**

**دې کتاب په 1324 کـ د**
**اقتصاد اوله درجه جايزه وؤې ده.**

# د پښتو

# اشتقاقونه او ترکيبونه

ليکونکی:

صديق الله "رښتين"

لومړی چاپ **1326 ل**

# د پښتو ټولنې له خوا

پښتو ټولنه د خپلو خپرونو په سلسله کې
د ښاغلي فاضل پښتون صدیق الله خان
رښتین دا ګټور او علمي اثر په ډېره مینه
لوستونکو ته وړاندې کوي او ښاغلي
رښتین ته پر تبریك ویلو برسېره د پښتو
ژبې او پښتون قوم د نور زیات خدمت
توفیق غواړي.

عبدالرؤف بېنوا
د پښتو ټولنې عمومي مدیر



## کتاب پېژندنه :


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم :- | د پښتو اشتقاقونه او ترکیبونه |
| لیکوال :- | لوی استاد پوهاند صدیق الله رشتین |
| مهتمم :- | پوهندوی ډاکټر زرغونه<br>(د لوی استاد علامه پوهاند رشتین د څېړنو ادبي ټولنه) |
| چاپ او خپرونکی :- | د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز |
| کمپوز او ډیزائن :- | د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز<br>فلیټ نمبر **314**، دریم پوړ، ګل حاجي پلازه<br>یونیورسټي روډ پېښور |
| لومړی چاپ :- | **1326** ل (پښتو ټولنه) |
| دویم چاپ :- | **1383** ل، **2004**م |

# د دې کتاب د مضمونونو فهرست

یادونه : په دې کتاب کښې تقریباً ټولې (**217**) لاحقې او (**35**) سابقې راغلې دي. د نومونو لاحقې (**106**) او په دې ډول دي.
فاعلي او نسبتي **32**، ظرفي لاحقې **26**، تصغیري **14**، د اسم صوت **4**، مصدري- حاصل مصدر **24**، د اسم آلې **3**، د صفاتو لاحقې **104** او دا دي :
د نسبتي صفاتو لاحقې **70**، د فعلي صفاتو **9**، د مجردو اوصافو لاحقې **25**، د افعالو لاحقې **7** دي.

## "د پښتو اشتقاقونه ا و ترکیبونه"

## دویم ځل چاپ

پښتو اشتقاقونه او ترکیبونه د پښتو ژبې د زده کړې په برخه کې هغه علمي او غني اثر دی، چې اروانباد پوهاند صدیق الله رښتین لیکلی او د وخت د پښتو ټولنې د خپرونو په لړ کې په **1326** هـ.ش کال د کابل په عمومي مطبعه کې چاپ شویدی.

څنګه، چې دغه ګټور اثر له یوې خوا د پښتو ژبې له مینه والو او څېړونکو سره د خپلې ملي ژبې په څېړنه او زده کولو کې زیاته مرسته کولی شي او له بلې خوا دا کتاب ډېر پخوا چاپ شوی دی او اوس نایاب دی، نو له دې امله د پښتو ژبې او ادب د پوهنځیو محصلین او محققین له زیاتو ستونزو سره مخامخ دي.

"د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز" د دغه مرکز د مؤسس او د پښتو او پښتونولۍ د خدمتګار محترم امام الدین ساپي په لارښوونه

دغه ګټور کتاب د ستر پښتون محمد ګل مومند بابا د څلویښتم تلین په ویاړ، چې د نړیوال سیمینار په ترڅ کې د روان کال د اسد په (27) نېټه د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز لـه خوا لمانځل کېږي. د پوهنتون محصلینو، څېړونکو او مستشرقینو د استفادې لپاره خپروو.

مونږ دا خپل ویاړ بولو، چې د لوی استاد پوهاند رښتین دغه ګټور علمي اثر په داسې وخت کې خپروو، چې د لوی پښتون مومند بابا د سیمینار د لمانځلو په درشل کې یو. هیله من یو، چې د دغه ستر پښتون او د پښتو د لوی خدمتګار د نړیوال سیمینار په مناسبت نور کتابونه هم خپاره او د دهٔ سپېڅلي روح ته یې ډالۍ کړو.

عبدالروف "قتیل" خوږیانی
د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز مشرکتونکی

# د پښتو اشتقاقونه او ترکیبونه

دا ګټور او علمي اثر په ژبپوهنه کې د لغت پوهنې په برخه کې خورا ارزښت ناك اثر بلل کېږي، په خاصه توګه په پښتو ژبه کې لومړنی ابتکاري ژبنی اثر دی، چې د کورنیو او بهرنیو ختیځپوهانو، ژبپوهانو او څېړونکو پاملرنه یې ځانته رااړولې ده او د پښتو ژبې د لغاتو د جوړښت او رغاونې په باب یو قوي او معتبر ماخذ ګڼل کېږي.

معلومه خبره ده، چې د یوې ژبې د لغاتو پلټل او څېړل او د هغې د جوړښتونو معنوي او لفظي ځانګړتیا او ښیګڼو رابرسېره کول ډېر کړاوون او ماغزه ویلي کول غواړي، خو سره د دې ټولو ستونزو، د دې کار تاداو ایښودل او په دې لاره کې لومړی ګام اخېستل د قدر او ستاینې وړ کار دی.

د دغه علمي کار په ارزښت هغه څوك پوهېږي، چې د دې لیارې له لوړو ژورو څخه خبر وي. د دې کتاب د اهمیت او ارزښت په برخه کې ډېرو ژبپوهانو، ادیبانو ځانګړې نظریې څرګندې کړې دي او د دې اثر علمي ارزښت یې ښودلی دی.

اروانباد پوهاند ډاکټر محمد رحیم الهام د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو د ژبپوهنې غښتلی استاد، د اروانباد لوی استاد علامه پوهاند رشتین د دریم تلین په یاد غونډه کې د نوموړي د نورو آثارو د یادولو په ترڅ کې دغه اثر یو شهکار بللی او د بیا چاپولو سپارښتنه او ټینګار یې کړی و، ځکه دغه کتاب اوس نه پیدا کېږي، ولې چې دا کتاب ډېر پخوا لیکل شوی او اوه پنځوس کاله مخکې چاپ شوی و. چاپي نسخې یې نه میندل کېږي. د څېړونکو اړتیا ورته ډېره ده.

بلـه د يـادولو وړ خبـره دا ده، چـې (پښـتـو اشـتقاقونه او ترکيبونـه) د کابل پوهنتـون د ژبـو او ادبيـاتو د پـوهنځي پښتـو څانګه کې د تعليمي نصاب په کريکولم کې شامل و يعنې د لغت پوهنې درسي کتاب و، چې لـوی اسـتاد اروابښـاد پوهانـد رشـتين پخپلـه د دغـه مضمون تـدريس هم کاوه.

بل اساسي ټکی چې دلته يې يادونه ضروري ده، هغـه د نـوي عـصر د غوښتنـو او ايجـاداتو لـه بهيـر سـره سـم پـه ژبـه کـې هـم د نويـو لغـاتو (نيولوګيزمونو) اړتيا ده، چې په دې توګه دا کتاب لـه ښاغليو ليکوالـو او څېړونکو سره د پښتو ژبې د نويو لغاتو پـه جوړونـه رغاونـه او کارونـه کې د بنيادي ماخذ په توګه مرسته کوي.

څنګـه چـې اوس د دغـه علمـي اثـر بيـا چاپېـدلو تـه اړتيـا ډېـره ليدلـه کېږي، نو د لوی استاد علامه پوهاند رشتين د څېړنو ادبي ټولنې په دې موقع وغوښتل چې د اروابښاد لوی استاد علامـه پوهانـد رشـتين د پـنځم تلين په مناسبت دغه قيمتي اثر بيا چاپ او پـه يـاد غونـډه کـې يـې مينـه والو ته ډالۍ کړي.

همدارنګه په دويم ځل چاپ کې د مينه والو او څېړونکـو د اسـتفادې له پاره د لوی استاد د نـورو نويـو آثـارو فهرسـت هـم پـه پـای کـې وړانـدې شوی دی.

د دې کتـاب د چـاپولو پـه پروسـه کـې "د سـاپي د پښتـو څېړنـو او پراختيا مرکز" د خپلې ملي پاليسۍ له مخې پوره پوره مرسته کړې ده او کتاب د دې مرکز په مالي لګښت چاپ شو.

پـه دې توګـه دوی تـه کـوروداني وايـو او پـه دغـه لاره کـې د لازيـاتو برياليتوبونو په هيله

# اعتذار

لکه څنګه چې هر يو کار په اول کښې نيمګړی او ناقص وي، زما دا کتاب به هم نيمګړتيا او تېرو تنو څخه خالي نه وي.

ټول ژبنی او پـه تېـره د کلمـاتو د راويـستنې او نښلـونې بحثونـه زياتـه پلټنه، څېړنه او پوره پوهه غواړي. زه په خپله بې وسی او کمزورۍ داده يم، او کوم شی چې زما دا بې وسي او کمزوري زياتوي؛ هغـه د پښتـو ژبې اصلي نيمګړتيا او د کتابونو او آثارونشتوالی دی. مګر سره د دې، د دې کار لومړی تادو ايښوول او په دې برخه کښې ړومبی ګام اخيستل د وياړنې او خوښۍ سبب بولم.

دا کتـاب هـر څـه چـې وي ښـه وي کـه نـا ښـه، نيمګـړی وی کـه پـوره، لاکن، بيا هم کېدی شي چې د پښتـو ژبـې د اشـتقاق او ترکيـب پـه برخـه کښې د نورو ځلميانو او پلټونکو د پاره يوه لارښوونه شي، او پـه ځينـو وختو کښې ورځنې د شونتيې او ليت کار واخلي.

باور وکړئ چې په دې کتاب کښې ما دومره کړاو او زحمت ويستلی دی چې د سر ماغزه يې را لـه خوټکولي دي. د دې زيار او کـړاو انـدازه يـوازې هغـه چا تـه معلوميـدای شي، چې د دې ليـارې لـه لـوړو ژورو او کندو کپرو څخه خبر وي.

دا کتاب تقريباً زما د نهولسو کالو د پلټنون او څېړنې محصول دی چې نن د کتاب په شکل د پښتو مينانو ته وړاندې کيږي.

کـه څـه هـم اصـل کتـاب پـه **1324** کـال کښـې کښـل شـوی ؤ ، مګـر وروسته پکښـې ان د چاپېدو تـر وختـه پوري نـور معلومـات زيـات شـوي دي.

سره د دې هم امید لرم چې پښتانه پوهان به زما تېروتنو ته په ښې سترګه وګوري او د خپلې پوهې په مرسته به زماخطا وې سمې کاندي.
په دې کتاب کښې چې له کوم ځایه اخیستنه شوې ده په دننه کتاب کښې ځای په ځای حواله ورکړ شوې ده، له دې کبله مو ماخذونه جلا ونه ښودل.

صدیق الله رشتین
د مطبوعاتو په ریاست کښې
د نشریاتو د لومړۍ څانګې مدیر

# تقريظونه

دا کتـاب چې ځينـو پښتنـو پوهـانو د جـايزې د ټـاکلو پـه وخت کښـی ليـدلی و. نـو خپلـی نظـر يـې پـه وروسـته ډول ښکـاره کـړي دي. مونـږ دا تقريظونه خالي د دې د پاره خپروو چې دا را تـه يـو نـوی شـی ښکـاري او په حقيقت کښې د يو نوې ور پرانيتنه ده:

**1**- دا کتاب ما وليد ، د مؤلف زحمت د قدر وړدی. په دې سلسله کښـې يې ښه او کافي معلومات ټول کړي او پـه يـو ښـه ترتيـب يـې تـدوين کـړي دي. البته چې په جزئياتو کښې مې زيات غورو نکړی شو چې صـحت او نه صحت يې پوره معلوم شي.

( شمس الدين مجروح)

**2**- دا کتـاب د پښتـو پـه ګرامـري مـسايلو بحث کـوي او د ژبـې پـه بـاب کښې ښه مفيد معلومات لري. کتـاب مفيـد او د چـاپولو وړ دی، کـه څـه هم ځينـی مـسايل بـه يـې اتفـاقي نـه وي او هـر څـوك بـه پکښـې ښېلـه رايـه ولري مګر دا د ښاغلي موءلف ګناه نه ده بلکې د موضوع اقتضا ده چې د يوې ژبې ګرامر ليکل په لومړيو مرحلو کښې همدغسې وي او تقريباً ظنی بلل کيږي.

د پښتو په ګرامري حصه کښې ښاغلي رشتين ډيره مـوده غـور او فکـر کـړی دی او په دې باب کښې دښه صلاحيت خاوند دی.

)

ګ

ل

پ
ا
چ
ا

ا
ل
ف
ت
)
.

**3-** د پښتو اشتقاقونو کتاب مې ولید، یو ښه کتاب دی. د ښاغلي رشتین د څو کالو د تتبع او پلټنې نتیجه ده چې په دې لار کښې یې کړی دی.

(عبدالروف بېنوا

## لومړنۍ خبرې

کله چې د قدرت اراده په دې وشي چې يو قام ويښ او د لوړتيا په لارو روان کاندي نو ړومبى په هغو کښې د بيدارۍ يو غير شعوري حرکت پيدا کړي چې دا حرکت وروسته بيا قوي او مخ په زياتېدو شي.

د يو قام د ويښېدو مثال هم لکه د يو ويده سړي دى چې لومړى پکښې لږ لږ حرکت پيدا شي او بيا وروسته پوره بيدار او ويښ شي.

مګر د يو قام بيداري او ويښتوب هله قوي او پوخ وي چې پر ادبي بيدارۍ باندې بناوي– ادبي نهضت او ويښتوب د ټولو نهضتونو تادو او اساس دى – دا نهضت داسې مثال لري لکه د روح چې په يو کالبوت کښې ورپوکلى شي او هغه ته نوى ژوند ورکاندي. هر ملت او هره جامعه چې بيدارېږي نو لومړى پکښې د ادب او ژبې نهضت را پيدا کيږي.

که چېرې دغه نهضت يې قوي او په صحيحو اصولو وي نو نورې سياسي او اجتماعي بيدارۍ يې هم په برخه کيږي او که نه – نو دغه

حرکت او بیداري بیا په خوب او چوپتیا بدلیږي. دغه د ادبي نهضت دورې ته د ویښتوب او رنساس دوره وایي.

دا دوره په هر چا راځي او هر څوك ترېنه ګټه اخستلای شي، مګر هله چې بیدار او ویښ وي او د ژوندانه په ډګر کښې په همت، مړانه، عزم او اراده پښې او لاس وخوځوي. د یورپ دا موجوده ترقۍ او لویې کامیابۍ لکه چې ګورو د "رنساس" د دورې له وخته شروع شوي دي. د دغې دورې لومړی تادو او اساس هم ادبي نهضت او بیداري وه. ولې تر څو چې د یو قام ادب نوی او ژوندی نشي نو تر هغې پورې په هغه قام کښې نوی روح را پیدا کېدل ګران او مشکل دی. دلته زه د نورو قامونو د بیدارۍ تاریخ نه بیا نوم بلکې غواړم چې د پښتنو بیدارۍ ته څه نه څه اشاره وکړم.

دا معلومه ده چې پښتانه له ډېر پخوا څخه د بیدارۍ په لارو روان شوي دي او له قدیم څخه یې په مرکزي آسیا کښې د خپلې پادشاهۍ "واکمنۍ" تورې او حکومت نامه ځرګنده ساتلې ده، زما نه به هیڅکله د غیاث الدین غوري، شهاب الدین غوري، سلطان بهلول لودي، شیر شاه سوري، حاجي میرویس، احمد شاه بابا، تیمور شاه او داسې نورو پښتنو بادشاهانو نومونه او کار نامې هېرې نکړای شي، مګر دومره خبره ده چې د دې سیاسي بیدار یو په نسبت یې ادبي بیداري کمزورې وه، یعنی څومره چې لاژم وو په هغه اندازه یې دې خواته فکر نه دی راګرځولی، همدا وجه ده چې کله نا کله یې په سیاسي ژوندون کښې هم کمزوري راغلي ده او د واکمنۍ واګې ترې د نورو لاس ته ورغلي دي.

لکه چې د مخه مو وویل د ژبې او ادب بیداري د هر قام د لوړتیا د پاره یو ضروري او لاژمي رکن ګڼل کیږي. دا منو چې د پخوانو سوریانو او بیا د غوریانو پښتنو په وخت کښې لږو ډېر ادبي نهضت پیدا شوی ؤ. او بیا وروسته د هوتکو او سدو زو د پاچاهانو په عصر کښې هم د پښتو د ژوندانه رڼا موجوده وه مګر خبره دا ده چې دا رڼا په قوي او پرله پسې صورت هیڅکله نه ده پاته شوې؛ نو ځکه تر اوسه د پښتنو په علمي او ادبي خوا کښې ډېرې نیمګړتیاوې موجودې وې.

مګر له ښه مرغه چې دغه نیمګړتیاوې هم اوس پوره کیدونکي دي ځکه چې له څو کالو څخه په پښتنو کښې یو قوي علمي او ادبي نهضت پیدا شوی دی. د دې ادبي نهضت تاریخ غالباً له (**1300**ه) را په دې خوا دی مګر زیات قوت یې د (**1350**ه) نه وروسته موندلی دی. په دې وخت کښې د افغانستان یو تدبیري او پوه پاچا اعلیحضرت محمد نادر شاه دغې نیمګړی تیا ته متوجه شو او د پښتو ژبې د ژوندانه او نوي نهضت تیږه یې کیښوده چې دغه نهضت تر اوسه پورې په ښه صورت جاري او روان دی.

دا ښکاره ده چې د ژبې او ادب لوړتیا د یو قام او ملت په لوړوالي کښې پوره تاثیر او اغیزه لري او د یو ملت د سیاسي ژوند د پاره علمي او ادبي ژوند هم حتمي او لاژمي شی دی. د ژبې ژوند او لوړتیا دا ده چې هغه ژبه یوه علمي او ادبي ژبه شي، په ټولو خلکو کښې عاموالی پیدا کړي او د خپل قام ټول احتیاجات پوره کاندي. اکثرا پوهان وایي چې د ژبې یووالی او لوړتیا د ملت د لوړتیا او یووالي د پاره یوه لویه

وسيله ده. نو څوك چې د ملت د لوړوالي او درناوي آرزو من وي، بايد چې د خپلې ژبې د لوړتيا او ترقۍ په لار کښې هم پوره زيار وباسي او خپله ژبه د هر قسم مطالبو د ځايېدلو او بيا نولو د پاره تياره او لايقه کاندي.

دا يقيني ده چې د چا ژبه ناقصه او نيمګړې وي هغه له علم څخه هم فايده نشي اخستلای او نه هغه په خپله ژبه کښې علمي موضوعات بيانولای شي ځکه چې الفاظ او عبارات د معانيو او مطالبو لوښی او ظرفونه دي. لومړی بايد لوښی وسيع اوارت کړای شي او وروسته پکښې بيا يو شی واچولی شي. دا وجه ده چې زه د پښتو ژبې د خدمت په لار کښې د پښتو ګرامري، لغوي، اشتقاقي او داسې نور خدمتونه وړاندې بولم او هميشه غواړم چې په دې برخه کښې يو څه خدمت وکړم.

له دې نه مخکښې مې هم په دې لړۍ کښې ځينی ګرامري کتابونه او نور ليکلي دي او اوس غواړم چې د پښتو د اشتقاقاتو او ترکيباتو په باره کښې يو څه وليکم خو لومړی غواړم چې د ژبو عمومي تشکيل او رغاونې په خو او شا کښې لږو ډېرو غږېږم.

# د ژبو رغونه

د ژبو پوهان د يوې ژبې د تشکيل، ساختمان او رغاونې د معلومولو او ښودلو د پاره د دې وروسته شيانو څېړنه ضرور بولي:

**1-** هغه آوازونه چې الفاظ او کلمات ور څخه جوړ شوی وي چې هغه بيا پر اصلي او امدادي آوازونو وېشل کيږي، اصلي آوازونو ته په پښتو کښې "بی غږه توري" او امدادي آوازونو ته "غږيز توري" وايو. اصلي توري په پښتو کښې دا دي: (ب، پ، ت، ټ، ج، چ، خ، ځ[1]، څ، د، ډ، ر، ړ، ز، ژ، ږ، س، ش، ښ، غ، ك، ګ، ل، م، ن، ڼ).

او امدادي توري دادي : (ا، و، ه، ی) نو په دغه حساب د پښتو ټول مفرد آوازونه (**30**) دي، په بل عبارت د پښتو الفبا له (**30**) تورو څخه مرکبه ده او د پښتو ټول الفاظ او کلمات هم له دغو غږونو او تورو څخه جوړ شوي دي.

**2-** هغه شکلونه دي چې دغه آوازونه په ليك کښی وښيي، يعنی د تورو او غږونو تحريري اشکال لکه چې وړاندې مو وليکل.

**3-** د مخصوصو اصولو لاندې د حروفو تبديل او تغير.

---

(1) **د دې توري آواز پخوانی او نسبت (ز) ته ثقيل دی، ليکن دا شکل نوی پيدا شوی دی. پخوا ( ځ) وء د (خ) په صورت هم ليکل شوی دی. م ر دا موجوده شکل غوره او بی التباسه دی.**

**4- د کلمو او الفاظو تشکیل او جوړول.**

په مجمل طور سره د یوې ژبې د رغاونې او تشکیل په بحث کښې غټې، غټې ټکي دغه وو چې بیان شول، مګر د جزئیاتو په لحاظ د دې بحث لمن ډېره اوږده او لویه ده. مونږ په دې کتاب کښې غواړو چې په (4) ماده یعنی د پښتو ژبې د کلماتو په تشکیل کښې څېړنه وکړو، ځکه چې همدا برخه یې مهمه او ضروري ده. لکه چې ښکاره او ثابته ده په هره ژبه کښې له مفردو آوازونو څخه کلمات جوړیږي او د کلماتو له یو ځای کولو او ترکیب څخه عبارات او جملې لاس ته راځي. جملې او عبارتونه د یو بل د پوهولو راپوهولو ذریعه او وسیله ده چې په دې واسطه خلك یو بل ته خپل فکرونه او مقصدونه ښکاره کوي. دغه جملې او عبارات که چېرې په تلفظ او وینا کښې استعمال شي تقریري ژبه او که چېرې ولیکل شي تحریري ژبه بلل کیږي. مقصد دا دی چې ژبه د عباراتو او جملو د استعمال نوم دی او عبارات او جملې د کلمو او الفاظو له ترکیب څخه جوړیږي نو په دې لحاظ د کلماتو د جوړښت او پېژندنې بحث د ژبې په بحثونو کښې یو ضروري او حتمي بحث دی.

## د کلماتو ډولونه

هغه لفظ چې د یوې معنا د ښکاره کولو د پاره له خولې څخه وځي کلمه بلل کیږي چې په پښتو کښې ورته "ویی" وایو. مونږ د یو بل د پوهولو را پوهولو او مطلب ښکاره کولو د پاره د کلمو او الفاظو له یو ځای کولو څخه کار اخلو نو ځکه زمونږ په خبرو او جملو کښې ډېرې

کلمې استعمالیږي، دغو کلمو ته د ګرامر په اصطلاح د کلام اجزاء یا د کلمو قسمونه وايي. په پښتو کښې د کلمو قسمونه دا دي:

اسم – ضمير – صفت – **فعل**- قيود – ادات

**1-** اسم هغه کلمه ده چې پر یوه پوره او ځانله معنا دلالت کوي او زمانه ترې نه معلومیږي. په **بل** عبارت اسم هغه کلمه ده چې د یو شي، یا یو کیفیت نوم وي لکه سړی، لرګی، وېره او داسې نور.

**2-** ضمير: هغه کلمه چې د اسم په عوض استعمالیږي ضمير باله شي لکه "زه، ته، دی" او داسې نور مثلاً په دې جمله کښې (دی راغی) " دی" د سليم پر ځای استعمال شوی دی.

**3-** صفت : صفت هغې کلمې ته وايي چې د یو اسم حالت او څه رنګوالی بیانوي. په **بل** عبارت د یو ذات پر یو وصف باندې دلالت کوي لکه "تور، پوه" چې په دې جملو کښې (دا تور قلم زما دی– سليم پوه سړی دی_ د قلم او سړي یو حالت او وصف بیانوي.

**4- فعل**: **فعل** هغه کلمه ده چې پر یوه کار او کړو دلالت کوي او زمانه او وخت ترې هم معلومیږي لکه (ځي، ځي به، ولاړ) اوله کلمه په موجوده زمانه او دوهمه کلمه په آینده زمانه دریمه کلمه په تېره زمانه کښې د تللو په **فعل** دلالت کوي.

**5-** قيد: هغه کلمه چې دا سم، **فعل** او صفت سره د معنا د مقيدولو د پاره استعمالیږي قید **بلل** کیږي. لکه چې په دې جملو کښې ( نا څاپه راغی – بیا ژر ولاړ) " ناڅاپه او ژر" د **فعل** قیود دي.

**6**- ادات : هغې کلمې ته وايي چې ځانله پوره معنا نه لري مګر د نومو او افعالو سره يوه معنا ورکوي لکه "له، ته" چې په دې جملو کښې يې " زه کور ته ځم – سليم له کوره راغی" د ارتباط معنا ورکړې ده.

دا شپږ واړه قسمونه بيا په خپل منځ کښې هم د معنا او هم د لفظ په لحاظ نور نور اقسام لري چې د ټولو بيان د دې ځای کار نه دی، خالي ځينی قسمونه يې چې زموږ د وروسته بحث سره، ارتباط لري په لنډ ډول بيانيږي.

## د کلمو لفظي قسمونه

ټولې کلمې د لفظ او ظاهر په لحاظ اول پر بسيطو او مرکبو او بيا پر جامدو او مشتقو کلمو وېشل کيږي او په دې وروسته ډول دي:

**1**- بسيطې کلمې هغه دي چې له يوه جز څخه زيات اجزا نه لري لکه (لرګی – زه – پوه – وليد – ژر – له) او داسې نور.

**2**- مرکبې کلمې. هغو ته وايي چې دوه ياله دوو څخه زيات مستقل اجزا لري لکه (کټمل – سر تور- وليدلی شو- ژر تر ژره) او داسې نور.

**3**- جامدې کلمې هغه دي چې له بلې کلمې څخه نه وي راوتلی يعنی د اشتقاق [1] عمل پرې نه وي جاري شوی لکه په عربی کښی (شجر،

---

(1) **د صرف کتابونه.**

رجل، حجر) او په پښتو کښې (ونه، تيږه) يا داسې نورې کلمې. ځينو کسانو د جامدو کلمو تعريف داسې کړی دی :[2] چې نه په خپله کوم ماخذ لري اونه د نورو کلمو د پاره مأخذوي. د دې تعريف له مخه په پښتو کښې جامدې کلمې لږې دي.

**4-** مشتقې کلمې هغو ته وايي چې له يوې بلې کلمې څخه جوړې شوې او راوتلې وي لکه (زړه ور – زړه ورتيا ، زړه وري) چې له زړه، څخه مشتقې شوي دي.

او په عربی کښې (سما، دنيا) چې له (سمو = علو) او (دو = قرب) څخه ماٴ خوذې او مشتقې دي. د پښتو په ټولو اقسامو کښې مرکبې او بسيطې کلمې شته چې وروسته به په خپل خپل ځای بيان کړی شي. دا رنګ مشتقې کلمې هم په پښتو کښې ډېرې دي ځکه چې افعال خو ټول مشتقې ګڼل کيږي او په صفاتو او اسماو کښې هم مشتق کلمات زيات دي او جامدې کلمې هم په پښتو کښې موجودې دي.

## د لغاتو معنوي قسمونه

لغت هغه کلمه ده چې د يوې معنا د پاره وضع شوی وي او درستو خلکو پرې اتفاق کړی وي، نو په دې لحاظ لغت او اصطلاح سره فرق

---

(2) مخزن الفواعد فارسی

لري ځکه چې اصطلاح هغه ده چې یوې خاصې ډلې پرې اتفاق کړی وي.
کوم لغات چې په پښتو کښې استعمالیږي هغه د معنا په لحاظ دا وروسته قسمونه لري:

الف – اصلي لغتونه : هغه دي چې د ژبې واضعانو ایښی وي او له کومې بلې ژبې څخه نه وي راغلی. د پښتو اکثر لغات له دې قسم څخه دي او د پښتو خپل اصلي مال ګڼل کیږي، دا لغتونه هم بیا په خپل منځ کښې نور ډېر قسمونه لري او هغه دا دي:

**1-** مشترك : هغه لغت دی چې لـه یوې معنـا څخه زیـاتې معنـا ګـانې ولري لکه (ډنګر) چې هم خوار او هم څاروي ته وایي. یا (کټې) چې هـم د میښې د بچي او هم د موټو دوښو په معنا دی. په دې ډول (لـور = طرفـه، داس) (کوټه = خانه ، ناچل) هم مشترك نومونه دي. مګر مـشترك لغـات په پښتو کښې نسبت نورو ژبو ته کم دي.

2- مترادف : هغو لغاتو ته وایي چې تقریباً معنا یې یوه وي، یعنې دوه یا له دوو څخه زیات لغات چې په یوه معنا راشي مترادف لغات بلل کیږي. لکه (تندی، وچولی، ټنده) چې دا درې واړه د پیشاني په معنا دي. یا (لیو، اخیر) چې دواړه د کاګل معنا ورکوي یا (باړخو، اننګی) په دې ډول نور مثالونه هم په پښتو کښې ډېر دي. [1]

**3-** مصنوعي : (جوړ شوي) هغه لغات دي چې له پخوا څخه په ژبه کښې نه وي او وروسته د ضرورت له مخه جوړ شوی وي. مثلاً اور ګاډی

---

(1) **ینی خلك له مرادفو لغاتو خه منكر دي او وايي چ هر لغت یوه مخصوصه باریکي لري چ له بل خه ی جلا كوي.**

(ریل)، الوتکه (طیاره،) اوبتله (تحت البحری)، ډوب ماکو (تارپیډو)، ټپټپی (موټر سایکل)، جولاګاډی (بایسکل)

په مصنوعي نوموکښې د ادیبانو او عوامو وضع یو برابره ده او دواړو ته اهمیت ورکول کیږي مګر هله چې د ټولو اتفاق پرې راشي.

ب – <u>مستعار لغتونه</u>: مستعار لغتونه هغه دي چې له بلې ژبې څخه را داخل شوی وي. مستعار لغتونه په پښتو کښې هم شته، او له دې قسم لغاتو څخه یوه ژبه هم نشي خلاصېدی. د قومونو تر منځ ارتباط، تګ وراتګ تجارتي او نور نزدېوالی د مستعارو لغاتو د راتلو سبب او دلیل دی.

مستعار لغتونه بیا په خپل منځ کښې ځینی قسمونه لري چې دا دي وروسته ښودل کیږي:

**1- دخیل**: دخیل هغه لغات دي چې بې له څه معنوي او لفظي تغیر څخه په یوه ژبه کښې له بلې ژبې څخه را ننوتی وي. یعنی هغه بېګانه الفاظ چې بې له لفظي او معنوي تغیر څخه په یوه ژبه کښې را داخل شي؛ د خیل لغات بلل کیږي لکه (صابون، تنور، ظلم، صبر) چې له عربی څخه په پښتو کښې را داخل شوي دي. یا مثلاً (پنسل، کوټ) چې له انګریزی څخه پښتو ته راغلي دي. په دې ډول نور هم ډېر مثالونه شته.

**2- مفغن**: هغه لغات دي چې سره له تغیره په پښتو کښې را داخل شوی وي دا بیا په درې قسمه دي.

اول هغه دي چې کوم لفظي تغير پکښې نه وي راغلی بلکې يوازې معنا يې بدله شوی وي لکه (عنوان) چې په عربۍ کښی (سر ليك) ته وايی او په پښتو کښې د تکبر او لويۍ په معنا دی. مثلاً وايي ((فلانی په څه عنوان روان دی)).

دا رنګك (کسر، منت) چې په عربۍ کښې د ماتولو او احسان او په پښتو کښې د عيب او زجر معنا ورکوي. دې قسم ته معنوي مغفن وايي.

دوهم هغه دي چې په معنا کښې يې تغير نه وي راغلی مګر په لفظ کښې يې بدلون راغلی او شکل يې اوښتی وي لکه (سبا، ميرات، اودس، ښار) چې له (صباح، ميراث، آبدست، شهر) څخه مغفن شوي دي . دې قسم ته لفظي مغفن ويل کيږي.

دريم قسم مفغن هغه ته وايي چې هم يې په معنا او هم يې په لفظ کښې تغير او بدلون پيښ شوی وي لکه (اورته) چې د عربۍ له (عورت) څخه مفغن شوی دی. په عربۍ کښې عورت هغه اندامونه وايي چې ستريې لازم وي، مګر په پښتو کښې (اورته) نکاح ښکلی ښځې ته وايي. دې قسم ته لفظي او معنوي مفغن ويل کيږي[1] مګر دا قسم مفغنات په پښتو کښې ډېر کم او لږ دي.

دغه تغير او تبديل چې په مفغنو کلمو کښې راځي دا نو بيا ډېر صورتونه لري لکه تقديم او تاخير، تبديل، زياتوالی، کموالی او داسې نور چې د ټولو بيان اوس دلته نشو کولای.

---

(1) **سپيږ لی ږ تو**

ج- مختلط لغتونه: دریم قسم لغات چې په یوه ژبه کښې استعمالیږي هغه مختلط لغتونه دي. مختلط لغتونه هغو ته وايي چې په هغو کښې د بلې ژبې یو مستعار جزء هم وي یعنی یو عاریتي عنصر هم ولري که څه هم ټول لغت پردی او دبلې ژبې نه وي لکه (قارجن، کبر جن، دولت من) چې په دې کلمو کښې (قار، کبر، دولت) مستعار الفاظ دي.

دا رنګك (صبرول، قهرول) هم دغه ډول کلمې دي. په دې قسم نور هم ډېر مثالونه په پښتو کښې شته.

تبصره : دا ټول انواع او اقسام چې بیان شول د یوې ژبې د تشکیل اجزا ګڼل کیږي او درست په ژبه کښې د استعمال اوویلو حق لري. له دې کبله ښایي چې دغسې لغات ټول د پښتو مال وبولو او په بد نظر ورته ونه ګورو.

## د لغاتو او معنا ترمنځ مناسبت

د لفظ او معنا تر منځ مناسبت په حقیقت کښې یو ښه شی دی. او باید چې د هرې کلمې له خپلې معنا سره یو تناسب موجود وي. د لفظ او معنا تر منځ ارتباط د لغت د پوهېدو سره هم ډېر کومك کوي. کوم وخت چې سړي ته د یو لغت اصل او نیله معلومه شي او په معنوي مناسبت یې پوه شي نو هغه لغت د سړي زړه ته پوره لویږي او په ذهن کښې یې ښه ځای نیسي. یو وخت چې ما په پښتو کښې د "ترله" نوم واورید نو ښه پرې نه پوهېدم او نا آشنا را ته ایسېده، بیا مې یوه ورځ

فکر شو چې دا خو ( د تره لور) مخففه کلمه ده نو پس له هغه را باندې خوړ ولګيد او زړه ته مې پرېووت.

د لغت او معنا تر منځ مناسبت پيدا کول يو عجيبه خوند او کيف لري او دا خوند هغه چا ته معلومېږي چې د لغاتو په څېړنه او څېله معلومولو کښې پلټنه کوي. مثلاً کوم وخت چې سړي ته معلومه شي چې د " کسل" مصدر له (کسی = مردمك) او د نغوړل مصدر له (غوړ) څخه اخيستل شوی دی نو بې له شکه پرې قانع کيږي او خوړ او ښه ورته برېښي. همدا وجه ده چې د لغاتو تحقيق او د هغو څيله او اصل معلومول د ژبې په بحثونو کښې يو خوږ او مهم فن ګرځېدلی دی. اوس ګورو چې د دې مناسبت مراعات تر کومې اندازې په ژبو کښې شوی دی.

لکه چې ښکاره ده د دې اصل مراعات له سامي ژبو څخه په آريايي ژبو کښې زيات ليدل کيږي ځکه چې په آريايي ژبو کښې مشتقات او مرکبات ډېر دي او په دې قسم لغاتو کښې ضرور تناسب او نزديوالی موجود وي. په عربی کښې هم دداسی مناسبتونو مثالونه پيدا کيږي. مثلاً د عربی په (سماء) کښې چې د آسمان په معنا يو بسيط لغت دی مناسبت موجود دی، ولی چې (سماء) له سر نه هر پورته شي ته وايي او آسمان هم له سر نه پورته او جګ دی. دا رنګ د دغې مادې فعل هم د پورته والي په معنا مستعمل دی لکه :

(سما سمواً ای ارتفع) – په پښتو کښی هم د دغه مناسبت په وجه آسمان ته "هسك" ويل شوی دی ځکه چې (هسك) جګ او پورته شي ته

وايي. سربېره پر دې لکه چې ګورو په پښتو کښې د دغه اصل مراعات تر ډېرې اندازې شته مثلاً دا نومونه: (چوغکه، چڼچڼه، ټيغکه، ټك ټکی (شيطانك آسيا)، بغبغی (هارن) يو معنوي مناسبت لري او چې څوك يې واو ري نو ضرور ورته معلومېږي چې دا نومونه له طبعي او اصلي آوازونو څخه جوړ شوي دي. ولې چې دغه شيان هر يو دغسې آوازونه باسی. مثلاً چوغکه " چغ چغ" ټکټکی " ټك ټك" او بغبغی " بغبغ" ټيغکه "ټغ ټغ" کوي.

لاکن په بسيطو لغاتو کښې بې تناسبه لغات هم پيدا کيدی شي چې مناسبت يې چاته معلوم شوی نه وي. دا نقص تقريباً د دنيا په هره ژبه کښې شته. د مثال په ډول په عربۍ کښې د (شجر) لفظ د خپلې معنا سره څه مناسبت نه لري يا په فارسی کښې (درخت ، چوب) او داسې نور له دې کبله عرب وايي چې اسما معلول په علت نه دي. د فرهنګ نظام موءلف ليکي:[1] چې په سنسکريت کښی چې يوه ډېره علمي ژبه ده هم دا نقص موجود دی او د لفظ او معنا تر منځ د تناسب رعايت پکښې نه دی شوی[2]. مګر دا احتمال هم شته چې هر لفظ دې په ابتدا کښې د يو تناسب له مخه اېښودول شوی وي خو وروسته به يې د زمانې په تېريدو هغه مناسبت له منځه وتلی وي او اوس به پرې سړی ښه نه پوهيږي. په دغسې لغاتو کښې وضع معتبره ده او څنګه چې پخوانو واضعينو اېښی دی، هغسې به يې مونږ هم استعمالوو، که څه هم په مناسبت يې پوه

---

(1) **فرهن     نظام 3 جلد**

(2) **اغلی مير سيد قاسم خان وايی چ     دا خبره صحيح نه ده.**

نشو. دا هم یقین دی چې د پښتو ډېر بسیط لغات د خپلې معنا سره مناسبت لري او مونږته یې هم دغه تناسب او ارتباط معلومیدای شي. لکه: تله (ترازو) هغه آله ده چې تول پرې کیږي. یا مخو که (نول) چې د یو شي مخې ته وتلي وی او داسې نور. نور ورپسې د فقه اللغی کار دی چې ټول لغات سرې وخیږي او ډېر مثالونه پیدا کړي.

زمونږ دلته یوه لنډه اشاره غرض وه او بس.

له دې بیان څخه زمونږ مقصد دا دی چې باید د پښتو په نویو لغاتو کښې تروسه پورې د مناسبت خیال وساتل شي او ښایي چې په آینده کښې مونږ په دې اساس د پښتو نوي لغات وټاکو. هر وخت ځانله احتیاجات او ضروریات لري، ژبه هم د دغسې اجتماعي او نورو ضروریاتو له مخه پوره کیږي. مونږ دې ته اړیو چې پس له دې ډېر علمي نومونه او اصطلاحات وضع کړو او د ژبې له اصلي ریشو او د الفاظو جوړ ولو له اصولو څخه کار واخلو. دا کار به په دوه ډوله کیږي. یو دا چې مونږ د نوې معنا او لفظ تر منځ د مناسبت خیال وساتو او بل دا چې د پښتو کلماتو او الفاظو د جوړولو او تشکیل اصول وپېژنو چې زمونږ د بحث اصلي موضوع هم دا شی دی. نو په دې صورت کیدای شي چې زمونږ نوي نومونه او علمي اصطلاحات څه قدر معقول خوند ور او په زړه پورې راشي او که نه نو هسې بې فایدې خواري به وي.

## د لغاتو لفظي تغیرونه

د کلماتو لفظي تغیرونه او اوښتنې په هره ژبه کښې یو طبعي او ضروري شی دی. دغه کلمې چې په خبرو اترو کښې استعمالیږي ضرور

پکښې د ځايو د اختلاف او د زمانې د تېرېدو په وجه ځينې تغيرونه او تبديلونه پيښيږي [1] دا تغيرونه په خپل منځ کښې زيات صورتونه لري – مګر ځومره چې تراوسه په پښتو کښې مونږ ته معلوم شوي دي هغه وروسته په لنډ صورت ښوول کيږي:

**1-** <u>زياتوالی</u> : د يو حرف يا زياتو حروفو په زياتوالي سره د يوې کلمې صورت بدليږي او دې ته تغير او شکل بدلېدنه وايي. لکه :

د خندل له مصدر څخه (خاندي) چې په اصلي ماده کښې يې الف زيات شوی دی. يا کرهنه چې د کرل له مصدر څخه ماخوذ او (ه) پکښې زياتي ښکاري. په يوه کلمه کښې د يوه حرف زياتوالی يا له ماخذ او ياله نورو مشتقاتو څخه معلوميږي. په نومونو کښې د زياتوالي مثال لکه غوږی چې د (غوږ) څخه د (ی) په زياتوالي جوړه شوې ده.

**2-** <u>حذف او تخفيف</u> : د حذف او تخفيف په واسطه هم ديوې کلمې شکل بدليږي او بل لغت ترې جوړيږي. لکه د نښتل له مصدر څخه (نښلي) چې (ت) يې لويدلې او حذف شوې ده. دارنګ ممکنه ده چې (غږ) له غوږ څخه د واو په حذف اخستل شوی وي.

---

(1) **د عربی صرف او نحو په کتابو ک ی د تغير او تصريف اقسام دا وروسته ودل شوي دي: 1. زياتوالی 2. حذف 3. ابدال 4. د حرف نقلول 5. د حرکت نقلول 6. د يو حرف ساکنول 7. د يو حرکت بدلول. د عربی کلماتو اعلالونه او تغيرونه هم د دغو صورتو له مخه کيإي. مثلاً په (قايل، قل، قال، يقول) ک ی چ له (قول) خه شتقاق شوی دی ب له حرفی نقل خه نور ول تغيرونه راغلي دي او د حرفي نقل مثال (ايس) دی چ اصل ي (يئس) دی.**

کله حذف او تخفیف په یوه کلمه کښې راځي او په معنا کښې څه توپیر نه راولي لکه : پوزه، پزه– وویل، ووې.

**3**- ابدال: د یو حرف اوړېدل هم په بل حرف باندې په یوه کلمه کښې تغیر پیښوي چې دا تغیر کله د معنا په بدلون هم اثر اچوي لکه : له وتل ځخه (وځي) او کله په معنا کښې فرق نه راولي او دواړه یو لغت ګڼل کیږي، لکه نمر، لمر – نښتل، منښتل او داسې نور.

**4**- تقدیم او تاخیر: یعنی د یو حرف مخکښې وروسته کېدل هم د کلمې په شکل او صورت کښې تغیر راولي چې دې قسم ته د یو حرف ځای بدلول هم وایي. لکه پسرلی، سپرلی - ځمکه ، مځکه – غړوندی، وړغندی.

**5**- د حرکت بدلول: د حرکت بدلول هم په وړاندې ډول د کلمې شکل او صورت بدلوي چې کله یې معنا هم ورسره اوړي. لکه ګډ چې د ګاف په زور شریك، مخلوط او د ګاف په زورکي (پسه) ته وایي، او کله یې معنا نه اړوي لکه شپږ چې ځوك یې د (پ) زور او ځوك یې په زورکي وایي.

د یو حرف ساکنول او د حرکت نقلول هم د تغیر اقسام دي او په یوه کلمه کښې تغیر پیدا کوي لکه ( مین، مینه) مګر مثالونه یې په پښتو کښې ډېر نه پیدا کیږي.

له دې وړاندی بیان ځخه ثابته شوه چې د پښتو اکثرا تغیرات او تصریفات د مادې یعنی حروفو په زیاتوالي، حذف، ابدال او تقدیم او تاخیر سره عملي کیږي او د حرکاتو یعنی د هئیت د تغیر مثالونه پکښې کم دي او همدا ممکنه ده چې د آریایي ژبو یو خصوصیت وي- پر

خلاف له عربی چې هلته د حرکاتو په بدلولو، نقلولو او ساکنولو ډېر تغیرونه راځي او نوې کلمې جوړېږي. لکه (ضرب) چې د (ض) په پیښن او د (ر) په زیر ترېنه مجهوله صیغه لاس ته راځي.

د پښتو د کلماتو تغیرونه نور هم ډېر صورتونه لري، دلته مونږ اکثراً د مفردو کلمو تغیرونو ته اشاره وکړه – د مرکبو کلمو او نورو تغیراتو بیان به وروسته په خپل خپل ځای کښې راشي.

## د کلماتو په جوړونه کښې د نومونو درجه

د ژبې په تشکیل کښې تر هر څه ړومبی نومونه زیاته برخه لري.ګویا نومونه د ژبې اصلي مواد دي چې بې له دې څخه د ژبې عمارت نشي جوړیدای. نه یوازې فعل کار کولای شي، نه صفت او نه څه بل څه څو چې اسم نه وي. مثلاً که سړی درسته ورځ (راغی یا سپین) وایي پوره مطلب ترې نه ولاړیږی څو چې فاعل یا موصوف ور سره رانه وړي. بالعکس له نومونو څخه یوازې هم کار اخیستل کیږي. مثلاً که څوك چا ته د یو شي تش نوم واخلي نو هغه پوهیږي چې دغه شی غواړي لکه چې کوچنیان او د ژبې نو آموزان د شیانو په نومونو اخستلو خپل مطلب حاصلوي. دغسې د کلماتو په جوړونه کښې هم د کلام له نورو اجزاو څخه نومونه زیاته حصه لري په عربۍ کښې ټول افعال له مصدر څخه جوړیږي. دارنګ ډېر اسما او صفات هم له مصدر څخه لاس ته راځي او مصدر خو د اسم له اقسامو څخه بلل کیږي. سر بېره پر دې په عربۍ

کښې له یو جامد نوم څخه هم ځیني فعلي اشتقاقونه کیږي. لکه : له (قوس) څخه "قوس الشیخ ای انحنی ظهره فصارقوسا و استقوس ای انحنی"[1] .

همدا وجه ده چې د عربۍ صرف نحو د پوهانو یوه مهمه ډله یعنی بصریان وایي چې اصل په اشتقاق کښې اسم دی نه فعل – په آریایي ژبو کښې هم هر کله چې کلمات اکثراً. د لاحقو او یا سابقو په راوړلو او یا د دوو کلمو په ترکیب سره جوړیږي نو ویلای شو چې د دې ژبو په ترکیباتو او اشتقاقاتو کښې به هم اسم اصلي عنصر وي.

طبیعت او فطرت ته هم دا نزدې ده چې اول دې یو نوم پیدا شي بیا دې د هغه د شان وړ یو صفت او فعل موجود شي.

په پښتو کښې لکه چې ګورو نومونه د کلماتو په تشکیل کښې لوړ مقام لري ځکه چې اکثر مصادر له اسم او صفت او افعال بیا له مصدر (فعلي نوم) څخه جوړیږي. دا رنګ فعلي صفات او نور هم له مصدر څخه لاس ته راځي. سر ببره په دې ډېر لام والا مصدرونه هم د نورو ذاتي نومونو څخه جوړ شوي دي. لکه (کسل، داړل) چې له (کسي او داړي) څخه ماخوذ دي. دلته اوس مونږ د مثال په ډول د یو نوم څخه جوړې شوې کلمې ښیو مثلاً د (غوږ) له کلمې نه دا وروسته کلمې را وتلي دي:

نغوږل – غوږو – غوږور – غوږین – غوږی،[1] غوږی (یو ګوټ ته پروت پتې) سپر غوږی – غوږوالی – غوږیچنه ( پس ګوش)

---

(1) **جار بردی د شافي شرح.**

(1) **د کار کولو یوه ره ده چ کاري ي مخ ته اچوي او غوإونه لري.**

په پښتو کښې له طبعی اصواتو څخه هم ډېر کلمات جوړېږي لکه له ټك څخه ټکټکی او نور.

په پښتو کښې پس له نومو څخه صفات د کلماتو په جوړولو کښې زیاته حصه لري او په دریمه او څلورمه درجه کښې بیا قیود او ادات دي که څه هم د اداتو استعمال زیات دی مګر زمونږ مقصد په مستقلو او اساسي اجزاو کښې دی. هر کله چې ځینی پوهانو د یوې ژبې په تشکیل کښې د جامدونومو، افعالو او مصادرو د موقعیت ښودل هم ضرور بللي دي؛ نو ځکه مو په دې ځای کښې دغه مقصد ته یوه لنډه غوندې اشاره وکړه.

## د کلماتو د جوړولو صورتونه او قسمونه

لکه چې د مخه مو هم ویلي دي،د کلماتو د تشکیل بحث په هره ژبه کښې یو مهم او ضروري بحث دی. نوي ضروریات او احتیاجات د هرې ژبې پوهان دې ته اړباسي چې نوي لغات او کلمات جوړ او تیار کاندي. د لغاتو د تشکیل او جوړېدو سلسله باید چې همیشه په یوه ژبه کښې جاري وي، ځکه چې همدا د یوې ژبې د ژوند او لوړتیا ذریعه ده.

مګر د نویو کلماتو جوړونه ضرور ځینې اصول او قواعد غواړي چې بې له دغو اصولو څخه د کلماتو تشکیل یو طبعي او اصولي جریان نشي پیدا کولای. نو د دې د پاره لازمه ده چې د ژبې په اصلي او پخوانو کلماتو کښې څېړنه او پلټنه وشي او د هغو د تشکیل او جوړېدو صورتونه اولیارې معلومې کړی شي. په دې صورت کېدای شي چې د

کلمو د تشکیل قاعدي او اصول منځ ته راشي او په آینده کښې ور نه د نورو کلمو په جوړولو کښې کار واخستل شي.

هر کله چې پښتو په عمومي شیانو کښې د نورو آریایي ژبو د اصولو او قواعدو سره شریکه ده نو ځکه غواړو چې ړومبی د آریایي ژبو د کلماتو د تشکیل صورتونه وښیو او پس له هغه د پښتو د کلماتو د جوړوني صورتونه او لیارې بیان کړو.

**1-** "لاریمر"[1] چې یو انګریز مستشرق دی په خپل پښتو ګرامر کښې لیکلي دي، چې په هندو جرمنی ژبو کښې الفاظ په دې وروسته درې طریقو سره جوړیږي :

الف : د لاحقو په زیاتولو او علاوه کولو سره لکه: پاړو ګر، غمجن او داسې نور.

ب : د سابقو په یو ځای کولو او لګولو سره لکه: هم زولی، هم غاړی، بې لاری.

ج: د دوو مستقلو الفاظو په یوځای کولو او پېوستولو سره لکه: سپین سترګی، سرتور، بوډۍ ټال (قوس قزح)، نمرګل او داسې نور.

**2-** ((پرتو علوی)) د الماني ژبې په ګرامر کښې وایي[2]: چې د کلماتو په جوړونه او تشکیل کښې دوه صورته لیدل کیږي چې یو اشتقاق دی او بل ترکیب – له یوې کلمې نه د بلې کلمې اشتقاق په پنځو لارو ممکن دی:

---

(1) **د لاریمر د پ تو رامر له فارسي قلمي ترجمه خه چ په پ تو ولنه ک ده.**

(2) **دستور زبان ٓالمانی د تهران چاپ.**

**1**- د اصلي کلمې د خاتمو په غورځولو سره ( هغه کلمې چې له هغو څخه نورې کلمې راوځي) اصلي کلمې بلل کیږي په اصلي کلمو کښې اسم ، مصدر، صفت، فعل راتلی شي)

**2**- د اصلي کلمې د یو اصلي حرف په تغیر سره.

**3**- په اصلي کلمه کې د یو امدادي حرف په زیاتولو سره.

**4**- په اصلي کلمه باندې د لاحقو په زیاتولو سره.

**5**- په اصلي کلمه باندې د سابقو په علاوه کولو سره.

په دغو طریقو سره خالي اسما، صفات او افعال جوړیږي.

<u>ترکیب</u>: هغه کلمه چې یو جزء لري اصلي کلمه او که له دوه یا زیاتو اصلي کلمو څخه جوړه شوې وي نو ترکیبي کلمه بلل کیږي. هره ترکیبی کلمه له دوو برخو څخه جوړیږي.

الف :- ریشه او اصل چې مقصودي او مهم جزء وي :

ب:- متمم چې د کلمې ټوله معنا د هغه په واسطه پوره کیږي، مګر کله ترکیبي کلمه یو بل مفهوم لري چې هغه یې له اجزاو څخه هیڅ نه معلومیږي. [1] مطلب دا چې په مرکبو کلمو کښې یو جزء اصلي او بل جزء مکمل او متمم وي.

په الماني ژبه کښې د کلمو د ترکیب صورتونه دا دي:

**1**- چې اصلي جزء یې مرکب او متمم جزء یې ساده او مفردوي.

**2**- چې اصلي جزء یې ساده او متمم جزء یې مرکب وي.

---

(1) **لکه په ډ تو ک (پرې ودل) چ د ترك معنا ي له اجزاو نه معلومیاږي.**

**3-** چې اصلي جزء او متمم جزئ دواړه مرکب وي.

دا ترکیبونه به یا بې د ارتباطي کلمو څخه وي او یا به د ارتباطي کلمو په واسطه جوړ شوی وي. په آلماني ژبه کښې د کلماتو له ترکیب او یو ځای کولو څخه د اوروسته مرکبې کلمې جوړیږي :

**1-** مرکب نومونه
**2-** مرکب صفتونه
**3-** مرکب عددونه
**4-** مرکب فعلونه
**5-** مرکب قیود.
**6-** مرکب ادات.

**3-** "کلو د اوژه" په خپل فرانسوي ګرامر کښې د کلماتو د تشکیل په باب داسې لیکي[1] لکه څنګه چې د یوې ونې څخه څانګې او ښاخونه پیدا کیږي دغسې له یوې کلمې څخه نورې کلمې پیدا کیږي چې د ټولو تر منځ یو ارتباط او شریك فکر موجود وي. دغسې کلمې ته اصل او رینبه وایي. د کلماتو تشکیل د "افیکسونو"(Affixes) په واسطه کیږي. دا هغه اجزا دي چې د یوې کلمې د مخه او یا وروسته راځي او معنا ته یې تغیر ورکوي. دا بیا پر دوه رازه دی (پریفکسونه) (Prefixs) – " سفکسونه" (Sufixes) چې لومړی د کلماتو په سر کښې او دوهم د کلمو په پای کښې راځي. په فرانسوي کښې د کلمو تشکیل په دوه ډوله کیږي. یو د ترکیب په ذریعه او بل د اشتقاق په ذریعه.

---

(1) **د اغلي ر تیا له ترجمه خه چ د کابل په مجلو ک ی خپره شوې ده.**

ترکیب بیا پر دوه قسمه دی یو د پریفکس د زیاتولو په واسطه او بل د بسیطو کلمو د یو ځای کولو په واسطهٔ او اشتقاق د سفکس په علاوه کولو حاصلیږي، د بسیطو کلمو په واسطه ترکیب دا لاندې صورتونه لري:

- له دوو نومو څخه.
- له یو نوم او یو صفت څخه.
- له دوو صفتونو څخه.
- د یو نوم او یو **فعل** په واسطه.
- ددوو **فعلونو** په واسطه.
- د یو **فعل** او یو صفت په واسطه.

په مرکبه کلمه کښې معمولاً څو اجزاء لیدل کیږي. لومړی اساسی جزء چې اصل او مونږ دی بل هغه جزء چې کلمه پرې تمامیږي یا شروع کیږي. د کلمو یو له بله یو ځای کول بیا دوه لارې لري یوه دا چې د اصلي کلمو په ترتیب کښی څه تغیر را نشي او بله دا چې تغیر او بدلون پکښې پیښ شي.

**4-** "ډاکتر عبدالحق) په خپل ګرامر قواعد اردو کښی داسې وایي:[1]

په اردو کښی چې دوه مختلف لفظونه سره یو ځای کیږي هغه دوه حالته لري چې یو لفظي حالت دی او بل معنوي حالت. د لفظي حالت بیان په دې ډول دی:

---

(1) **فواعد اردو د أیلی چاپ.**

- دوه لفظه چې سره یو ځای شي او هیڅ تغیر پکښې را نشي.
- دوه لفظه چې سره یو ځای شي او حروف پکښی حذف شي.
- دوه لفظه سره یو ځای او کوم امدادي حرف پکښی زیات شي.
- د اول لفظ وروستی او د دوهم لفظ ړومبی حرف چې سره یو وي نو یو یې غورځیږي.

5- کله د دوو لفظونو تر منځ د ارتباط راوستلو د پاره (او) زیاتیږي.

د معنوی حالت په بیان کښې وایي چې په سنسکریت کښی هم د معنا په لحاظ د مرکباتو تقسیم پردې وروسته ډول دی:

- تابع مرکب: چې یو جزء د بل ظرفي، یا مفعولي تابع وي.
- ربطي مرکب : چې د الفاظو تعلق پکښې د ارتباط د تورو په واسطه وي.
- توصیفي مرکب: چې صفت او موصوف سره راغلی وي.
- عددي مرکب: چې اول جزء پکښې عدد وي.
- تمیزي مرکب: چې په هغه کښې اول جزء تمیز (قید) وي. [1]

داکتر عبد الحق په یو بل ځای کښې مرکب پر دوه قسمه بللی دی: اول هغه دی چې یو خاص حرف یا علامه له بل لفظه سره یو ځای شي او یوه خاصه معنا پیدا کړي او بل هغه دی چې دوه جلا نومونه، یا یو نوم

---

(1) دغه مرکبات په اردو ک ی نور تفصیل او صورتونه هم لري چ تر أ رې اندازې د پ تو سره برابر دي او وروسته به بیان کؤی شي.

او یو صفت، یا یو اسم او فعل یا یو صفت اوفعل سره یو ځای شي او یوه مرکبه کلمه ترې جوړه شي.

**5-** سید محمد علی د فرهنګ نظام په مقدمه کښی لیکي.[2] چې مرکب پر دوه قسمه دی:

الف :- هغه دی چې دریمه معنا ترې پیدا نشي او اجزا یې په خپله اصلي معنا دلالت کوي لکه په فارسي کښې (آب چاه).

ب :- دویم مرکب هغه دی چې پر دریمه معنا دلالت وکړي یعنی بله دریمه معنا ترې مطلب وي لکه په فارسی کښې (آئینه آسمان) چې د لمر په معنا ده. وایي چې د کلماتو او اسماو ترکیب په سانسکریت کښی هم زیات او ډېر دی او د دوو کلمو له ترکیب څخه پکښی یوه کلمه جوړیږي.

**6-** "مرزا علی رضا شیرازی په (مخزن القواعد) کښی لیکلی دي [3] چې په فارسی کښې مرکب نومونه په دې وروسته صورتو سره جوړېږي.

**1-** کله دوه مختلف المعنا نومونه سره یو ځای کیږي لکه شبنم، خارپشت او نور.

**2-** کله له دووهم معنا نومو څخه جوړیږي لکه:

مرز و بوم – زیب و زینت.

**3-** کله دوه جلا نومونه د عطف په واسطه یو ځای کیږي لکه :

آب و هوا

---

(2) **فرهنګ نظام اول جلد د حیدرآباد چاپ.**

(3) **مخزن القواعد د حیدر آبادی چاپ.**

**4-** کله دا سم څخه وړاندې عدد راوړل کیږي لکه: هزار پا، چار پا.

په دې ډول د فارسی په نورو ګرامرو کښې هم د مرکبو کلمو بیان راغلی دی، او معلومیږي چې په فارسي کښې هم د کلماتو تشکیل ډېر صورتونه لري، دا رنګ مشتقات هم پکښی ډېرې دی.

# اشتقاق او ترکیب

اشتقاق:

لومړی شی د کلماتو په تشکیل کښی اشتقاق دی. اشتقاق په ټولو سامي او آریایي ژبو کښې شته او د هغه په واسطه ډېرې کلمې او الفاظ جوړیږي، په عربی کښې زیات نومونه له مصدر څخه راوځي او کله پکښی له جامدو نومو څخه هم اشتقاق کیږي. لکه (استنوق) چې له (ناقی) څخه مشتق شوی دی. د اشتقاق تعریف د هرې ژبې په ګرامر کښی په بېل بېل ډول راغلی دی.

په عربی صرف و نحو کښې اشتقاق دې ته وايي، چې يو لفظ لـه بـل لفـظ څخـه چې د دواړو تـر مـنځ لفظـي او معنـوي مناسـبت موجـود وي استخراج شي [1]

ځينې کسان وايي: اشتقاق دا دې، چې يو لفظ له بل څخه په څه قـدر تغيـر سره راووځي.[1] ځينـي نـور وايـي: لـه هرې کلمـې نـه چې يـو شـمېر کلمې په جلا جلا معنا ګانو جوړې شي هغه اشتقاق دی.[2] ځينو خلکـو د اشتقاق تعريف په دې ډول کړی دی: کـه چېـرې مونـږ د لفظـي او معنـوي تناسب او نزدېوالي په لحاظ يوه کلمه لـه بلې څخه جوړه کړو او لـه يـوه لغـت څخـه ډېـرې صيغې راوباسـو نـو دې تـه اشـتقاق وايـي، بنـاپر دې د اشتقاق علم هغـه علـم دی چې د هغـه پـه واسـطه د کلمـاتو مبـدأ او اصـل لټول کيږي. د دې وړاندې تعريفونو لـه مخه معلومه شـوه چـې د اشـتقاق تعريف تقريباً په ټولو ژبو کښې سره نزدې او يـو شـان دی چې مهـم رکـن

---

(1) اشتقاق په عربي کښې په درې ډوله دی: اول هغه دی چې د دوو لفظو تر منځ په حروفو او ترتيب دواړو کښې تناسب موجود وي. لکه ضارب له ضرب څخه. دوهم هغه دی چې په حروفو کې يې تناسب وي او په ترتيب کښې يې نه وي لکه جبذ له جذب څخه ، دريم هغه دی چې يو حرف پکښې مغاير مګر قريب المخرج وي. لکه: نعق له نهق څخه. په عربي اصطلاح کښې اول قسم ته صغير ، دوهم قسم ته کبير او دريم قسم ته اکبر اشتقاق وايي. دغه شان په عربي کښې اشتقاق په محقق او شبيه هم وېشل شوی دی. محقق هغه دی چې ثابت او يقيني وي لکه دغه پورته مثالونه او شبيه هغه دی چې شك او شبه پکښې وي لکه د انسان اشتقاق له (نسيان) څخه ولې چې ځينی خلك يې له ( انس ) څخه مشتق بولي.

(1) قواعد اردو

(2) ترکی ګرامر.

يې د مشتق او مشتق منه تر منځ د لفظي او معنوي مناسبت موجود والی دی. په آريايي ژبو کښې ځينې حروف او ادوات هم شته چې د اشتقاق ادوات يې بولي او د هغو په واسطه د کلمو قسمونه بدليږي او معنا ګانې يې اوړي. لکه په پښتو کښې (ور- ين) چې د (غوږور- غوږين) کلمې د هغو په واسطه له (غوږ) څخه جوړې شوې دي.

هغه ټولې کلمې چې له يوه ماخذ څخه را وتلې او مشتق شوي وي عايلوي او هم ريښه کلمې بلل کيږي. او اصل يې آره او مونډ بولي. د مثال په ډول په پښتو کښې د (غويی، غوا) د کلمې هم ريښه او عايلوي کلمې دا دي: غوبل – غوجل – غويمنډ – غويمه – غوباړی (خر مګس) غالوشه (ظرف ګاودوشی)- غوبون = غوبه = غاوچی – غوڅکی – غوشايه – او ممکن چې ( غوښه – غوړي – غولاڅه) هم د دې آرې او ريښې سره ارتباط ولري چې وروسته به يې عموميت موندلی وي.

**ترکيب:** ترکيب دې ته وايي چې دوه يا له دوو څخه زياتې کلمې سره ونښلي او يوه کلمه ترې جوړه شي او ځانله مفهوم او معنا وښندي. لکه: پی مخی، رون مخی، غوږوالی، نمر ګل او نور.

## د کلماتو په اشتقاق کښې ځينې قاعدې

د پښتو اشتقاقونه غالباً د آهنګ او د ژبې د صوتي اصولو تابع دي. يعني ديوې کلمې سره چې کومه لاحقه لګيږي نو د آهنګ د سمون د پاره پکښې ځينې تغيرونه راځي. دا تغيرونه که څه هم په منظم ډول نشي

بیانیدای مګر تر یوې اندازې چې ښکاره او څرګند دي په وروسته ډول ښودل کیږي:

**1-** کله د کلمې او لاحقې د نښلو لو د پار (ا، و، ی) راوړل کیږي لکه: له ډم څخه ډمامه، له زیږ څخه زیږانك، لـه مـخ څخه مخوکه – له لوید څخه لویدیځ.

**2-** په اصلي حروفو کښی هم ځینی حروف شته چې د کلمې او لاحقې ترمنځ د آهنګ برابرولو او موزون والي د پاره زیاتیږي. لکه: ((س)) چې په (خپسکه) کښی د ((خپه او که)) تر منځ زیات شوی دی.

**3-** کله د صوتي ضرورت او د کلمې د آهنګ برابرولو دپاره امدادي توري (ا، و، ی، ه) او ځینې نور حروف غورځیږي. لکه:

له چاړه څخه چړتون، له زوړ څخه زړښت، له شګې څخه شګلن،

له لېوني څخه لیونتیا ، له ګورم څخه ګوروان [1] او داسې نور.

**4-** که چیرې د اولې کلمې آخر حرف او د لاحقې لومړی حرف سره یو وي نو یو ځنې حذفیږي.

لکه: له ټوپك څخه ټوپکی– له ښانك څخه ښانکی[2]

**5-** کله یو امدادي حرف په بل باندې بدلیږي لکه: له منګي څخه منګوټی، له پوزې څخه پیزوان چې په اول. مثال کښې (ی) په (و) او په دوهم کښی (و) په (ی) بدل شوی دی. غرض دادی چې امدادي او ځینی

---

(1) په دی مثال کښې (م) حذف شوی دی.

(2) په دې مثالونو کښی لاحقه (کی) دی.

نور توري د تلفظ درواني او آهنګ برابرولو د پاره هر ډول تغير قبلوي او دا تغيرونه په پښتو کښې قياس او اساس ګڼل کيږي.

**6-** هر کله چې اصوات په پښتو کښې اکثر يوسيلابي وي، نو کله دغه اصوات د يو نوم د جوړولو د پاره په مکرر صورت هم استعماليږي. لکه: چڼچڼه – ټکټکی – کوړ کوړی (فاخته)

**7-** د لاحقو څخه لومړی حرف اکثر مفتوح وي او کله په يو نيم مثال کښې ساکن هم راځي لکه: له تور څخه تورکی ( دوده آتش)

**8-** د حرکاتو تغير او بدلون دا رنګګ د يو حرف ساکنيدل يا متحرك کېدل دا ټول د کلماتو د تشکيل په وخت کښې د صوتي ضرورت له مخه پېښېدونکی دی. په دې باره کښې کوم عمومي قانون نشته خو د کلماتو د آهنګګ سمون او دوينا آساني ته کتل کيږي. هر څنګه چې يوه کلمه په خوله او وينا کښې سمه راتله، هغه ډول پکښې ځيني حرکتونه هم وړاندې وروسته کيږي.

**9-** دا قاعدې د سابقو دراوړلو او تراکيبو جوړولو په وخت کښې هم تطبيقيږي.

## د پښتو د کلماتو جوړونه

د پښتو د کلماتو د جوړونې بحث پردوو برخو وېشل کيږي، لومړۍ برخه يې اشتقاقونه او دوهمه برخه يې ترکيبونه دي.

## لومړی برخه – اشتقاقونه

څومره چې معلومه ده په پښتو کښې د کلماتو د اشتقاق او راویستنې د پاره دوه صورته دي:

یو صورت دا دی چې بې له قانوني او منظم صورت څخه د امدادي تورو په کمولو، زیاتولو ، بدلولو او داسې بل تغیر لاس ته راځي او بل صورت دا دی چې په منظم او قانوني ډول د ((پسینه تورو)) په لګولو سره جوړیږي. په اول صورت کښې د کلماتو اصل او ریښه معلومول څه قدر مشکل او زیات لټون او څېړنه غواړي، دغه شان د اشتقاق د یوې قانوني او قیاسي لارې پیدا کول هم پکښې ګران دي مګر په دوهم قسم کښې دا دواړه کاره آسان دي. نو ځکه اول قسم ته سماعي او دوهم قسم ته قیاسي وایو، بله دا خبره ده چې په اول قسم کښې خالي د کلماتو ارتباط او نزدیوالی معلومیږي او په دوهم صورت کښې پرته له دې څخه د نویو کلمو د جوړولو د پاره هم یوه لاره منځ ته راځي. دا قسم زما په خیال ډېر ضرور دی، ولې چې په دې واسطه د آینده اشتقاقاتو او نویو الفاظو د جوړولو د پاره یوه لار معلومېدی او یو اساس کېښودی شي.

له دې کبله مونږ په دې کتاب کښې یوازې دوهم قسم اشتقاق بیانوو او غواړو چې د کلماتو صرفي تحولات او تبدلات بیان او د کلمو د اشتقاق او اخستنې قیاسي صورتونه وښیو. لاکن ړومبی تر دې پکار دي چې د اول قسم اشتقاق یو څو مثالونه هم د نمونې په ډول وښودل شي.مثلاً:

**1-** جل - جاله - جال - جول - جولې - جوال- (په دې کلمو کښې د محدود ځای معنا شریکه ده).

**2-** ټل (دلرګو)- ټېل- ټېله- ټول- ټولی (په دې کلمو کښې د ګڼ والي معنا پرته ده).

**3-** تل (د اوبو ویخ)، تلی= تاله (د پښې) – تالی (خاورین اوار لوښی)

**4-** ګټ - ګټه - ګیټی - ګاټی.

**5-** ورور - وراره - وربره - وراره (هغه ښځه چې وروریې مړوي) ورندار.

**6-** غوږ – غږ – غېږ (آغوش) غوږ د غږ د پاره لکه غېږ ده).

**7-** مين - مینه - مېنه (ځکه چې د مېنې سره سړی مینه لري).

**8-** کهول – کول – کلی – کلا

**9-** رشتین – رشتیا ، نوی – ناوې، تول – تال، نل – نلی (نری مغزن هډوکی)، کوټ – کوټه او داسې نور. په دې پورته ټولو مثالو کښی د لفظي او معنوي مناسبت له کبله د اشتقاق ارتباط موجود دی او په ځینو مثالونو کښی یې اصل هم معلومیږي لکه ( ورور) چې دغه نورې کلمې ترې راوتلې دي. مګر خبره دا ده چې دغه اشتقاقونه کوم منظم او قانوني صورت نه لري او په ځینو مثالونو کښې یې اصل هم نه معلومیږي؛ خو چې سړی یې په نورو آریايي ژبو کښی اصل او ریښه ونه پلټي.

د دوهم قسم يعنی قياسي اشتقاقونو په واسطه په پښتو کښې غالباً دا درې قسمه کلمې جوړېږي:

1. نومونه
2. صفتونه
3. فعلونه

دا هر يو قسم د اشتقاق مخصوص توري او صورتونه لري چې دادی په وروسته ډول بيانيږي:

## د نومونو اشتقاق او جوړونه

هر کله چې د نومونو په اشتقاق او جوړونه کښې لاحقې زيات تاثير لري او د هغو په واسطه بېل بېل ډول نومونه جوړيږي له دې کبله غواړو چې د نومونو تشکيل او جوړونه د لاحقو تر عنوان لاندې بيان کړو.

## فاعلي او نسبتي لاحقې (پسينه)

هر کله چې په پښتو کښې ځينی لاحقې د نسبتي او فاعلي معنا ګانو د پاره په شريك ډول هم استعماليږي له دې کبله دغه لاحقې تر يوه عنوان لاندې په وروسته ډول ښوول کيږي:

**1-** (که) دا يوه فاعلي او نسبتي علامه ده په سنسکريت کښې هم متحرك

كاف د فاعليت د پاره دی لکه: (آستك = مقر – واچك = متکلم)[1] نو دا دپښتو (که) هم هاغه د سانسکریت متحرك کاف دی چې زور يې اوس په (ه) ليکل کيږي. د دې لاحقې په واسطه د نومود جوړولو صورتونه دا دي:

الف :- د بسيطو اصواتو په آخر کښې راځي او فاعلي معنا ورکوي لکه:

له چوغ څخه چوغکه — له کوړك څخه کوړکه چرګه
له تيغ څخه تيغکه — له تيو څخه تيوتيو که
(يوه مرغۍ ده)
له غړك څخه غړکه (مشك)

ب :- د فعلي مادې[2] په آخر کښې راځي او فاعلي معنا ترې معلوميږي لکه:

له ځرځېدل څخه ځرځکه — له خوځېدل څخه خزدکه (حشره)
له الوتل څخه الوتکه — له توت خوړل څخه توت خورکه
(يوه مرغۍ ده)

ج :- دا سم په آخر کښې راځي او د نسبت معنا ورکوي لکه:

له مخ څخه مخوکه (منقار) — له نل څخه نلکه.

د :- د صفت په آخر کښې د نسبتي او فاعلي معنا ګانو د پاره راوړل کيږي لکه:

---

(1) فرهنګك نظام
(2) فعلي ماده دمصدر هغې حصې ته وايي چې د مصدر د لام او يا د مصدري علامو له حذف څخه وروسته پاته کيږي.

له زیږ   څخه   زیږکه (یوه مرغۍ ده)

له خپه   څخه   خپسکه (کابوس) –

له لټ   څخه   لټکه = کورمار (ځکه چې په ځای لټه پرته وي).

له ځوان څخه   ځوانکه (دانه)

له ګرم   څخه   ګرمکه (ګرم دانه)

**2-** (ك) ساکن کاف هم د نسبت او فاعلیت په معنا استعمالیږي او د صوت، نوم، صفت او فعلي مادې په آخر کښې راځي لکه:

| له چڼ څخه چڼچڼك (آله) | له سترګې څخه سترګك |
| --- | --- |
| له شونډ څخه شونډك | له زمري څخه زمرك |
| له شپېلۍ څخه شپېلك | له تور څخه تورك |
| | له موټې څخه موټك |

| له نیم څخه نیمك (غران) |
| --- |
| له چورلېدل څخه چورلك (ګردش) |
| له څپ څخه څپك [1] |

**3-** (کی) د نسبت، فاعلیت، تصغیر په معناو راځي او دا وروسته صورتونه لري:

الف :- د نومو په آخر کښې لکه:

| له ازغي څه ازغکی | له چجه څخه چجکی |
| --- | --- |
| له پیاز څخه پیازکی | له مرچ څخه مرچکی |

---

(1) د څلورو ګوتو اندازې ته وایي چې خلك یې په غلطه څپق بولي.

له اور څخه اورکی | له لاس څخه لاسکی (دسته)

له سیخ څخه سیخکی | له ځوخه څخه ځوخکی (نوله ٔ افتاوه)

ب :- د صفاتو په آخر کښې لکه:

له تریو څخه تریوکی = تروکی

له تور څخه– تورکی (دوده ٔ آتش)

له شین څخه شینکی

ج :- د فعلي مادې په آخر کښې لکه:

له ځښېدل څخه ځاځکی

له پئیل څخه پیوکی (موی باف)

له مسېدل څخه مسکی

د :- د صوت په آخر کښې لکه: | له ډمب څخه ډومبکی

له پر څخه پرپرکی | له چت څخه چتکی (قرچه)

**4**- (کۍ) دا نښکه د (کی) مونث شکل دی او غالباً د نسبت د پاره د نومو – صفاتو او اصواتو په آخر کښې راځي او نوي نومونه پرې جوړېږي لکه:

| | |
|---|---|
| له غوږ څخه غوږکۍ | له نیم څخه نیمکۍ |
| له غاړې څه غاړکۍ (قطارونه) | له پوست څخه پوستکۍ<br>پوڅکۍ (نرمه ٔ گوش) |
| له اوښ څخه اوښکۍ<br>(گهواره جنبان) | له خپه څخه خپکۍ |
| له لولۍ څخه لولکۍ | له توت څخه توتکۍ |

| | |
|---|---|
| (پروانهٔ گل) | |
| لـه لپـی څخـه لپـه کـۍ (چمچـهٔ آبخوری) | له بوږ څخه بوږ بوږکۍ (حباب) |

5- (ی) دا نښکه د نسبت او فاعلیت په معنا د اسم، صفت او صوت په آخر کښی راوړل کیږي لکه :

| | |
|---|---|
| له اړخ څخه اړخی (د غره ډډی ته ځای) | له ټوخ څخه ټوخی |
| له غوږ څخه غوږی | له چت څخه چتی (قرچه) |
| له ګنډ څخه ګنډی (کمیس) | له ټیغ څخه ټیغی (مرغ مری) |
| له تریخ څخه تریخی (تلخه) | له چون څخه چوڼی (بلبل) |
| له تور څخه توری (طحال) | له ټپ څخه ټپټپی (موټر سایکل) |
| له زیړ څخه زیړی (یرقان) | |
| له بر څخه بری | له ښپ څخه ښپښپی (چج) |
| له ډډ څخه ډډی (د بوسو خوسی) | له کړ څخه کړکړی (یو شي دی چې د ببړۍ د تناب د پاسه څرخي) |

6- (ۍ) د (ی) مونث شکل دی او داسم، صفت، صوت، فعلي مادي په پای کښی د نومو د جوړولو د پاره استعمالیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له غوږ څخه غوږۍ | له ټال څخه ټالۍ |
| | لـه تیـر څخه تیـرۍ (نـری لکـه د تیـر |

| | |
|---|---|
| له اوړي څخه اوړی | نیغ پټی) |
| له باران څخه بارانی | له لنډ څخه لنډی (یوډول مار یا یو ډول شعر) |
| له ټټر څخه ټټری (واسکټ) | له کونټي څخه کونټی (د لاس لرګی چې سر یې کوږ وي) |
| له سر څخه سری (سرخانه) | له بند څخه بندی (د غوایانو غاړې ته یې اچوي) |
| له غاښ څخه غاښی = خاښی | له غونډ څخه غونډی |
| لـه بـټ څخـه بټـی (د خبنتـو پخولو) | له ډیر څخه ډیری |
| له ژبې څخه ژبی (د کوچنیانو یو مرض دی) | |
| له جنګ څخه جنګی (ګنې ونې چې سره جنګیدلی وي) | |
| له ټك څخه ټکی (هدف چې په ویشتو کښې ترې ټك خیژي) | |

7- (جلي "ه") د نسبت په معنا د یو اسم، صفت، صوت، او فعلي مادې په آخر کښې راځي او نور نومونه ترې جوړیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له بور= پور څخه بوره (بچه مرده) | له کاغ څخه کاغه |
| له ټاپ څخه ټاپه (مهر) | له ټنګ څخه ټانګه (ګادی) |
| له ورور څخه وربره | له چپ څخه چپه (بوسه) |
| له چاپ څخه چاپه | له ټك څخه ټکه (آفت) |
| له ټپل څخه ټپله | له ترك څخه ترکه (روغن داغ) |

| له نوك څخه نوكه | له ژغ څخه ژغژغه |
|---|---|
| له ببل څخه ببله (خشكه بين بحر) | له پړك څخه پړكه<br>(د مرغيو نيولو يوه آله ده |
| له پېړ څخه پيړه (زواله) | له خوړل څخه خوړه<br>(شريني خوری) |
| له يك څخه يكه (بگی) | له ځرځېدل څخه ځرځه |

| له مروړل څخه مروړه (د تهويك د پاكولو مزی) |
|---|
| له بولل څخه بولله (قصيده) |
| له وېشل څخه وېشله (يو قسم پراته) |
| له تلل څخه تله (ترازو) |
| له وينځل څخه وينځه (كنيز) |
| له كنځل څخه كنځله (دشنام) |

**8-** (له) دا توری هم په نسبتي معنا سره د اسم، صفت، صوت او فعلي مادي په آخر كښی راوړل كيږي لكه:

| له زنگ څخه زنگوله (جرس) | له گډ څخه گډله (نان مخلوط) |
|---|---|
| له گرد څخه گردله | له تهوخ څخه تهوخله (سياه سرفه) |
| له بناخ څخه بناخله | له رېږدېدل څخه رېږدله (زلزله) |
| له پای څخه پايله (كرهٔ پای) | له ځريدل څخه ځېرله (بزغاله چې د |

| | |
|---|---|
| | خرېدلو وي) |
| له وار څخه ورله (حامله)[1] | |

**9-** (لی، لۍ) دا نښکی هم د (له) په شان د نورو کلماتو په آخر کښی د نومونو جوړولو د پاره راځي لکه:

| | |
|---|---|
| له روه څخه روهيلی | له ډب څخه ډبلۍ |
| له ختی څخه ختېولي | له درب څخه دربلۍ (يوه لويه ستن وي او نجونی ترې چارچاپير زانګي) |
| له ټيك څخه ټيكلی | له خرېدل څخه خېرلی (بز غالهٔ نر) |

**ياد ګيرنه:** يوازې (ل) هم په ځينو مثالو کښې د دغه پورته مقصد د پاره استعماليږي. لکه :

له ځنګ څخه ځنګل او له ټوپ څخه ټوپل (تودهٔ خرمن).

**10-** (وان) د لاحقه که څه هم اصلاً د صفاتو د جوړولو د پاره ده، مګر ځينی نومونه هم پرې جوړ شوي دي لکه:

له پوزې څخه پېزوان له ګروې څخه ګرېوان او نور.

**11-** (ری، رۍ) دا لاحقې چې لومړی مذکر او دوهمه د مونث د پاره ده داسم، صفت او صوت په آخر کښې د نومو جوړولو د پاره راغلی دي مګر څه قدر تصغيري معنا هم پکښی ليدل کيږي لکه:

| | |
|---|---|
| لــه پــت څخــه پتــری (بــرګ | له کچه څخه کچرۍ (خر بوزهٔ سبز |

(1) منجيله هم شايد چې په اصل کښی منګيله وي او له (منګي او له) څخه به جوړه شوي وي.

| خورد) | نیشکر) |
| --- | --- |
| له ګډ څخه ګډوري | له ګني څخه ګنېرۍ |
| له کونګ څخه کونګرۍ | لــه ډانــګ څخــه دانګــورۍ (عصای بغلی) |
| له غونډ څخه غونډوري= غونډاري | له ډینګ څخه دینګرۍ |

**12-** (ره) د دې علامې په واسطه هم دا یو څو نومونه جوړ شوي دي لکه:
له ټګ څخه ټکره، له ډغ څخه ډغره، له چیت څخه چیتره (پیزار کهنه)، له ډنډی څخه ډنډوره.

**13-** ( اره) دا نښکه د نومو جوړولو د پاره د نورو کلماتو په آخر کښې راځي لکه:

| له اوبښ څخه اوبناره (گهواره جنبان) | له کتې څخه کتاره |
| --- | --- |
| لـه نـوك څخـه نوکـاره (چونـدی) | (هغه میښه چې کتی یې مړ شي) |
| | له کتیل څخه کتاره (لویه چاړه) |
| له هیند[1] څخه هینداره (آئینه) | له سکوندل څخه سکوندلاره |
| له تونګې څخه تونګاره | له شوکول څخه شوکاره |
| | له ګرول څخه ګراره (برش آهنی اسپ) |
| له پټ څخه پټاره (هغه وزه چې په پښه کښې یې سپینه پټه وي) | له چونګ څخه چونګاره |
| له بغ څخه بغاره. | |

**یادګیرنه**: یوازې (ر) هم په ځینو مثالو کښې د دغه مقصد دپاره استعمالیږي لکه:

لـه انـډې څخـه انـډر (مـست)، لـه شـخوند څخـه سـخوندر (ځکـه چـې شخوندوهي)، له وند څخه وندر (د مال ترلو لویه بیاسته) او ممکن چې کنډر هم له کنډو څخه جوړ شوی وي.

**14-** (ړه) د دې لاحقې په واسطه هم ځینې نومونه جوړ شوي دي لکه:

| له چپ څخه چپړه (زوړ پیزار) | له خوکۍ څخه خوکړه (قلهٔ کوه) |
| --- | --- |
| له دیکې څخه دیکړه | له لك څخه لکړه |

---

(1) هیند دلته د اوبو په معنا دی چې په اصل کښې سیند دی. (( ه او س )) سره تل بدلیږي.

| له ټوك څخه ټوکړه | له څپ څخه څپېړه (چپلاخ) |
| --- | --- |
| له يك څخه يکړه | |

**15-** (اړ) لکه:

له بوت څخه بوتاړ (شکل) له لتي څخه لتاړ (پايمال)

له بوس څخه بوساړه.

**يادګيرنه:** يوازې (ړ) هم په ځينو مثالو کښې د دغه مقصد د پاره استعمال شوې ده لکه:

له کندې څخه کوندړ (خندق)، له کيند څخه کيندړ (هر شی چې د کيند غوندې ډېر زوړوي)

**16-** ( ړی، ړۍ) لکه:

له وروسته څخه وروستاړی (د مچی) له اوبو څخه اوبړۍ (جامنك)

**17-** ( نی، نۍ) لکه:

له کور څخه کورنۍ له تور څخه تورانی

له درب څخه دربانۍ له پټ څخه پټ پټانی

(په دې مثالو کښې د لاحقې او کلمې تر منځ الف زيات شوی دی).

**18-** (انه) :

له موټې څخه موټانه (د يوې موټی) له نيکه څخه نيکانه

**19-** (ند ، ندی) د فعلي مادې په آخر کښې د فعلي معنا د ښکندولو دپاره راځي او يو نوم ترې جوړېږي. لکه:

له جر[1] څخه جرنده له څرخ څخه څرخندی

[1] جر په (( زند)) کښې دميده کولو فعل ته وايي.

له ريبدل څخه رېندی له لويږي څخه لوئيږنده (شقيقه)

**20-** (مه) دا نښکه د اسم او صوت په آخر کښې راځي او نوي نومونه پرې جوړيږي لکه:

له ګوتې څخه ګوتمه له ځيرې څخه ځيرمه

له ډم څخه ډمامه له بوغ څخه بوغمه

دغه شان ممکنه ده چې پيازمه (دکټې لنګه) له پږي، پېږ او کوږمه (خانواده) له کور څخه جوړ شوي وي.

**21-** (ځه، ځنی) : له غرڅخه غرڅه، غرځنی له پای څخه پایڅه.

**22-** (سی) لکه:

له وير څخه ويروسی (نان مرده) له ګونګ څخه ګونګوسی.

**23-** (وس) لکه:

له ټپ (صوت) څخه ټپوس له پنډ څخه پنډوس (يعنی پنډشی)

په کنډاس او ډانډس کښې هم (س) د نسبت د پاره معلوميږي.

**24-** (ګنی): له خسر څخه خسر ګنی له پلار څخه پلار ګنی.

**25-** (ګه): له درون څخه درنګه (لاش مرده).

**26-** (ندار): له ورور څخه ورندار

له تره څخه ترېندار- تندار (زن کاکا).

**27-** (و): لهٔ مرګ څخه مرګو له زانګل څخه زانګو.

**28-** (وی) : له څرڅخه څاروی (چارپا).

**29-** (ونکی، ونی) دا دواړه لاحقې که څه هم د فعلي صفاتو لاحقې دي، مګر ځينی نومونه هم پرې جوړ شوي دي لکه:

له غولول څخه غولوونکی (يوه دانه ده چې د سترګې د پاسه راخيژي)

له باد څخه بادونی (زکام)،          له سپېره څخه سپېرووني
(وچ اوړه چې پېړه پکښې جوړوي).

**30-** (يی ) له خور څخه خور يی.

**31-** (ينه، ينګه) له خور څخه خورينه، خورينګه (خواهر خوانده)،
له مور څخه مورينه.

**32-** (انګه) د اعلامه د دي، وروسته نومو په آخر کښې راغلې ده، مګر د لغت نوعيت يې نه دی بدل کړی، خالي په معنا کښې يې څه قدر زياتوالی راوستی دی لکه:

له غړې څخه غړانګه          له ريښې څخه ريښانګه
له ځيلۍ څخه ځيلانګه          له چيرړې څخه چيرړانګه

په دې ټولو مثالو کښې نسبت اصل ته زياتوالی او لوی والی ملحوظ دی.

**تبصره:** کله کله يوه علامه يوازې د شکل بدلولو د پاره راځي او په معنا کې ډېر فرق نه راولي لکه: ننبه= ننبکه، کوډی= کوډله،
ځنې= ځنکی، بخری= بخرکی، کوکه= کوکاره.

## ظرفي لاحقې

په پښتو کښې ظرفي لاحقې هم ډېرې دي چې د هغو په واسطه د ظرف نومونه جوړيږي. دا لاحقې بيا پر دوه ډوله دي. يو د ظرف مکان لاحقې دي او بل د ظرف زمان.

**د ځايو نومونه:** د ځای د نومو د جوړوني د پاره په پښتو کښې وروسته لاحقې موجودې دي:

**1-** ( ځی) دا لاحقه د نومو ، صفاتو او فعلي مادې په آخر کښې راځي او د ظرف مکان نوم پرې جوړیږي. لکه: اجل ځی- ښکار ځی – دمه ځای – ایله ځی – وتوځی (مخرج) – ناستو ځی، ونډيځی، پخلیځی – ښوونځی – لوستوځی او داسې نور.

**تبصره**: په ځينو پخوانو کلمو کښې یوازې (ځ) هم د ظرفي لاحقې په حیث راغلې ده لکه دریځ[1] ( منبر) خاتیځ = مشرق، لویدیځ = مغرب. دارنګ په (ترخځ – وریځ) کښې هم (ځ) غالباً ظرفي لاحقه معلومیږی او ښايي چې په اصل کښې‌به د ترخ ځای او د وریا ځای وي. دغسې په تمبېځي (خیشوم کښې هم (ځی) د ظرف توری بللی شو.

**2-** تون [2] د ظرف توری او د ځای په معنا دی. په سانسکریت کښې هم ریښه لري لکه ( سهتان) او فارسی ( ستان) هم ور سره نزدې دی. دا توری په پښتو کښې د ځای د نامه د پاره استعمال شوی دی لکه : چړتون (غلاف شمشیر) میږتون- بودتون، مړستون، (مقبره) لاټد پستون[3] درملتون، نندارتون.

دارنګ ښايي، چې ستونی او لستونی هم په اصل کښې (ساتون او لاس تون) وی :

---

(1) امیر کروړ (**139** ھ) وایي (نوم مې بولي پر دریځ ستایوال).
(2) تون په قدیم ادب کښې د ځای په معنا راغلی دی. اسعد سوری (**425** ھ) د محمد سوري په مرثیه کښې وایي: (په جنت کښې دې وه تون زمونږ واکمنه
(3) په دې مثالو کښې (س) د (ستان) شکل څرګندوی.

**3**- (غـالی)[4] دا تـوری د نومـو او صـفاتو پـه آخـر کښـی د ظـرف مکـان د جوړولو د پاره راځي لکه:

اور غالی – شپون غالی – سوی غـالی – ژور غـالی – چوغـالی– پنډ غـالی– کوغـالی دغـه شـان بـوزغلی – سـتر غلـی[1] – کوډغـالی – ډوغـل (چقوری هم د ظرف مکان نومونه دي چې پـه پـای کښـې يـې ((غـالی)) يـا يې مخفف صورت (غل) استعمال شوی دی.

**4**- (جل) د اعلامه هم د ظرف مکان د جوړولو د پاره استعماليږي لکه پـه دې مثالو کښی: غوجل – اسجل – بورجل ( مـسکن محبـوب – ښـايي پـه اصل کښی بر جل يعنی لوړ ځای وي) دا رنګ مورچل هم ښايي پـه اصـل کښی مرګ جل وي.

**تبصره**: ((ګل)) هم په پښتو کښی د کليو د نومو په آخر کښی راغلی دی لکـه: نورګـل – ګنجګـل – د يـو ګـل – لـه دې کبلـه ويـلای شـو چـې (جل، ګل، غل) دريواړه کلمې سره نژدې او پـه يـوه معنـا دي ولـې چـې د ((ګ، غ او ك، ج)) بدلون په پښتو کښی ډېر دی.

**5**- (ګره) دا لاحقه د نومو په آخر کښی د کرنې د ځـايو د پـاره راځـي لکـه: غنمګره، شولګره، جوار ګره.

---

(4) غالی د ځای په معنا دی چې د زندله (ګاتو) او فارسی (ګاه) سره نږدېوالی لري. په زند کښی اور غالي ته آترګاتو وايي. د (ګ، غ، اوت، ل) بدلون په آريايي ژبو کښی عام دی، نو له (( ګاتو)) څخه پا آسانۍ (ګالی، غالی) او په پای کښی (ګل، غل، جل) جوړېدای شي. د غالي ريشه د (غولي = صحن) په کلمه کښی هم شته.

(1) دا کلمه ځينو کسانو له سترګ غالي څخه مخففه بللې ده مګر زما په خيال په همدی شکل هم صحيح ښکاري ستر د پورته او جګ په معنا دی يعنی پورته ځای.

**6-** (ګړ) د دغه ريشي سره ارتباط لري او د اسم او صفت په آخر کښې د استوګنې د ځايو د پاره استعماليږي لکه: راجګړ – ترهګړ – شيرګړ- ياغی ګړ او داسې نور.

**7-** (يانه، يانا) يوه قديمي د ظرف لاحقه ده چې د ځايو د نومو په آخر کښې استعمال شوې ده لکه: پکتيانه، باختر يانا، آريانا، سغديانا لوديانه او داسې نور.

**8-** (يانه) دا لاحقه د نباتاتو د نومونو په پای کښی استعمال شوې ده، لکه: اغزيانه، کوکيانه (ګلزار)، وښيانه – ځوزيانه.

**9-** ( نۍ) دا علامه هم د ظرفي لاحقې په حيث د ځينو نومو په آخر کښې راغلې ده لکه پوکنۍ- توکنۍ (تف داني) – اوبنۍ ( آبزار) دغه شان په چونيانۍ (تشناب) اوښويدانۍ (لخشك) کښی هم په لږ تغير ((يانه، نۍ)) ليدل کيږي. پونۍ (پای دان) هم دغه ډول کلمه ده چې وروسته پوړۍ شوې ده.

تبصره: په پښتو کښی ځينی نورې ظرفي لاحقې هم شته مګر يو يا دوه مثاله لري او په وروسته ډول دي:

**10-** (ړومه) لکه له رانجه څخه رنجړومه.

**11-** (ونج) لکه ګړي څخه ګړونج.

**12-** (وټ) لکه له ډيوې څخه ډيوټ.

**13-** (مه) لکه له ګوتې څخه ګوتمه.

**14-** (ونده) لکه له کر څخه کرونده = کروند.

**15**- (غه) لکه لرغه = برغه[1] دغه شان ((کر غه)) هم ممکن چې د کرلو د ځای په معنا وي.

د زماني نومونه : د زماني د نومو د پاره په پښتو کښی ډېرې نښکې او علامې نشته، یوازې د (مال) د کلمې په لګولو ځینې زماني ظرفونه جوړ شوي دي لکه: مانځه مال، کوچمال (وقت رحیل)

په قدیم ادب کښی دا کلمه د ( مل) په صورت استعمال شوې ده لکه: برمل = پیشین – لرمل (دیگر) ترمل (شام)[1]. نو اوس هم ښایي چې د (مل) کلمه د زماني ظرفونو د پاره استعمال کړی شي.

**2**- دغه شان ( تون) هم د ظرف زمان د پاره راتلی شي، لکه چې د فارسی ( ستان) د زمستان او تابستان په کلمو کښی په دغه معنا لیدل کیږي یعنی د ژمي وخت او د ګرمۍ وخت، په پښتو کښی د پېغلتون او بېلتون کلمې د ظرف زمان نومونه ګڼل کیدای شي، ځکه چې مقصد ترې د پېغلتوب او بېلوالي وخت او زمانه ده.

## د ښارونو او ځایو د نومو لاحقې

په پښتو کښې د ښارونو، کلیو او ځایو د نومونو جوړلو د پاره ځینی مخصوصې لاحقې شته او په لاندې ډول بیانیږي:

---

(1) لرغه، برغه په ډیره اسماعیل خان کښې د ځایونومونه دی یعنی لر ځای ، او بر ځای ، د (دغه) ریشه قدیمي ده، او د فارسی له (ګاه) سره هم نزدېوالی لري.

(1) ښکاروند وي د (**580** ه) د وختو شاعر وایي، که بریځروي که غرمه وي که بر مل وي، که لرمل که لمر لوېده که ترملونه.

**1-** (خا) دا يوه قديمي لاحقه ده چې د (کا) په صورت هم استعمال شوی ده او له (خوا) څخه مخففه معلومیږي. مګر اوس د (خا) په ځای (خوا) زیات استعمالیږي، مثالونه دا دي: پښتیخا، پکتیکا، پښتون خوا، وازه خوا، توره خوا او نور.

**2-** (شا) دا لاحقه د خوا د کلمې سره یو ځای استعمالیږي لکه په (خواوشا) کښې. د دې لاحقې په واسطه هم په پښتو کښې یو څو نومونه جوړ شوي دي لکه: سیدشا، میر انشا، بخمل شا، کجك شاه، غنم شا، [دا ټول د کلیو او علاقو نومونه دي].

**3-** (کوټ) که څه هم یوه ځانله کلمه ده مګر د لاحقې په شکل د کلیو د نومو په آخر کښې استعمالیږي لکه: پښتون کوت – کاشکوټ، سیال کوټ او نور.

**4-** (ګرام) دا کلمه په سانسکریت کښې د کلي په معنا ده خو د کلیو د نومو په آخر کښې د لاحقې په صورت هم راغلې ده لکه:

کلی ګرام، وډی ګرام، بټه ګرام، کانړي ګرام.

**5-** (پور) دا کلمه اوستا کښې د شاهی ځای په معنا ده او په پښتو کښې د یوې لاحقې په ډول د کلیو د نومو په آخر کښې راوړل کیږي لکه: اسلام پور – لاچه پور – شمشپور – سلطان پور – لال پوره – اکبر پوره.

**6-** (هار) [1] لکه ننګرهار، قندهار، چپرهار

**7-** (واړه) [ راجواړه] [2] – باجواړه - باجوړ

---

(1) د هار کلمه د فارسی له (سار) سره ارتباط لري

(2) په هند کښې را جواړې د راجګانو علاقو ته وايي.

**8-** (یالۍ) لکه بوډیالۍ – پنډیالۍ

**9-** (کنډ) لکه چمر کنډ – ملاکنډ – بارکنډ - لیکنډی

## تصغیري لاحقې ( پسینه)

په پښتو کښې د یو شي د کمکي والي د ښودلو د پاره ډېر ((پسینه توري)) موجود دي دا توري دوه خصوصیته لري یو دا چې د یو نوم معنوي تصغیر او کوچني والی ښیي یعنی په اصل معنا کښې څه ډېر فرق نه راولي بلکې د تصغیر صفت یې زیاتوي لکه سلیم ګی – غټکی، ځلمو ټی- طالب ګوټی او داسې نور او بل دادی چې د وړو کو او کوچنو شیانو د پاره د مستقلو نومونو کار ورکوي یعنی د شیانو په معنا کښې هم فرق راولي او له غټ جنس څخه په یو وړوکي جنس پورې تخصیص ورکوي، لکه (لروکی، چړوکۍ) چې د مستلقو نومو په حیث استعمالیږي، که څه هم د کوچني والي معنا پکښې پرته او ملحوظه ده هر کله چې زمونږ اصلي مقصد د نویو نومونو په جوړونو کښې دی، نو ځکه په مثالونو کښې هم دوهم ډول نومونه راوړل کیږي. د دغو خصوصیتونو د ښېلونې د پاره یو عمومی اساس دا دی چې په اشخاصو او عقلمندو کښې لومړی خصوصیت او په شیانو کښې دوهم خصوصیت پیدا کوي، چې دا دی په وروسته ډول ښودل کیږي:

**1-** (ګی، ګۍ) دا لاحقې د اسماؤ په آخر کښې راځي او د یو وړوکی او کوچني شي د پاره ترې ځانله نومونه جوړیږي لکه:

له جام څخه جام ګی　　　　له کوټه څخه کوټه ګۍ

له غر څخه غرګۍ ( کوه بچه)		له جارو څخه جارو ګۍ

له شادو څخه شادوګۍ		له جولا څخه جولاګی (عنکبوت)

**2-** (کی، کۍ) دا نښکی د اسماوً به آخر کښې د وړو شیانو د نومو جوړولو د پاره استعمالیږي او کله د اسم او لاحقې د اتصال د پاره (و) هم راوړل کیږي لکه:

له ډنډ څخه ډنډکی = ډنډوکی [1]		له جال څخه جالکی

له پنډ څخه پنډکی = پنډوکی		له چاړه څخه چړوکۍ

له کټ څخه کټکی		له دړې څخه دړوکۍ

**3-** (ټی، ټۍ) د اعلامې هم د نومو په پای کې دوړاندې مقصد د پاره را وړل کیږي لکه:

له منګې څخه منګوټی		له کټوۍ څخه کټوټۍ

له چرګ څخه چرګوټی		له شکرې څخه شکروټۍ

له مشر څخه مشروټی

**4-** (ړی، ړۍ) دا توری هم د اشیاو یعنی د ذات د نومو په آخر کښې د کوچنیو نومو د جوړښت د پاره راځی لکه:

له کندو څخه کندوړی		له بچی څخه بچوړی

له کدو څخه کدوړی		له کب څخه کبوړی

له دیګ څخه دیګوړی		له کوزې څخه کوزه ړۍ

له تمبې څخه تمبه ړۍ (تمبړۍ)

---

(1) دا خبره یاد لرل پکار دی چې په ټولو تصغیري نومو کښې کله کله د نوم او لاحقې تر منځ یو (و) هم راوړل کیږي او کله د اولې کلمې (ی) په ( و) بدلیږي.

5- (ری) دا لاحقه هم د ځينو نومو په آخر کښې راغلې ده لکه:

له مرېك څخه مرې کوری — له خيتې څخه خيتوری

له چاتۍ څخه چاتوری — له څوخکی څخه څوخکوری

(نوله آفتاوه).

له ګډ څه ګډوری — له تيك څخه تيکوری.

6- (ګوتۍ، ګوتې) دا کلمې چې له (ګی، تۍ) څخه مرکبې معلومېږي؛ د کوچنيونومو د جوړونې د پاره د نورو نومو په آخر کښې راوړل کيږي لکه:

له جام څخه جام ګوتۍ — له بياتي څخه بياتي ګوتې

له تختې څخه تخته ګوتې

7- (ګوړی) دا لاحقه له (ګی، ړی) څخه مرکبه ښکاري او د ورانـدې مقصد د پاره استعمالېږي لکه:

له انار څخه انار ګوړی (اننګوړی) — له وز څخه وز ګوړی

له چرګ څخه چرګوړی[1]

8- (نګړی) دا هم يوه تصغيري لاحقه ده چې د ځينو نومو او صفاتو په آخر کښې راغلې ده لکه:

له پيشو څخه پيشو نګړی — له خوار څخه خوارنګړی

له بلی څخه[2] بلونګړی — له تور څخه تور نګړی

له بچی څخه بچونګړی.

---

(1) په دی مثال کښې يو (ګ) د تکرار په وجه غورځيږي.

(2) بلي په اردو پيشو ته وايي.

**9-** (ی،ی) دا توری د تصغیري نومو د جوړولو د پاره د هغونومو په پای کښې راځي چې په (ك، ګ) مختوم وي لکه:
له ټوپك څخه ټوپکی، له ښانك څخه ښانکی، له سټك څخه سټکی،
له پرتوګ څخه پرتوګی.

**تبصره:** په پښتو کښې ځینی نورې تصغیري لاحقې هم شته خو ډېر مثالونه نه لري او دادي:

**10-** (چکی) لکه له غل څخه غلچکی.

**11-** (ځکی) لکه له نری څخه نروځکی،

**12-** (کنډی) لکه له پیش څخه پیش کنډی.

**13-** (چی) لکه له دیګ څخه دیګچی.

**14-** (چه) دا لاحقه د فارسی لاحقه ده مګر په پښتو کښې هم یو څو مثالونه لري لکه: ډولچه، تاخچه، نیمچه.

## د اسم صوت لاحقې

د صوت نومونه په پښتو کښې پر دوه ډوله دي: یو قسم یې بسیط نومونه دي چې هغه لاحقې نه لري لکه: ډز، ګرز، ټس، چغ، ترنګ، کړنګ، شرنګ او نور، او بل قسم یې اشتقاقي او جوړ شوي نومونه دي چې هغه له بسیطو اصواتو څخه د لاحقو په لګولو جوړیږي.

اشـتقاقي اصـوات ( غږونـه) د زيـاتو او ډېـرو آوازونـو د حکايـت پـه غرض استعاليږي او د کثرت او مبالغې ښودلو په غرض راځي چې بيـان يې په وروسته ډول دی:

**1-** (کی) دا لاحقه د دوه حرفي صـوت پـه آخر کښـې راځـي لکـه: پـشکی، کشکی، ښکی، شرکی، پرکی او نور [1]

**2-** (هـار) دا نښکـه د هـر ډول اصـواتو پـه آخـر کښـی را وړل کيـږي لکـه: غپهار- ډبهار- خرپهار- درزهار- ترنګهار- کړنګهار او نور.

**3-** (**ا**) دا علامـه غالبـاً د هغـه دوه حرفـی اصـواتو پـه آخر کښـی چې اول حرف يې زور ولري او د درې حرفي او څلور حرفي اصواتو پـه پـای کښـې استعماليږي.

لکـه:ټـسا، غپـا، ډزا، خرپـا، غربـا، ګـرزا، دربـا، شـرنګا، غرمبـا، ترنګا، کړنګا او نور.

**4-** (ی) دا توری غالبا د درې حرفي او څلور حرفي اصـواتو پـه آخـر کښـی راځي لکـه: خرپی، دربی، غربی، ګرزی، غرمبی، شرنګی، کرنګی او نور.

## مصدري لاحقې (پسينه توري)

مصدر په پښتو کښی هغې کلمې ته وايي چې د فعل او کـار نـوم وي او زمانه ترې نه معلوميږي په همدې وجه مصدرته ((فعلي نـوم)) هـم ويـل کيږي. د مصدر د جوړولو او اشتقاق دپاره په پښتو کښی ځينـی علامـې او نښکې شته چې دا دي وروسته بيانيږي:

---

(1) دا رقم اصوات د قندهار د خوا اصطلاح ده نور پښتانه يې نه استعمالوي.

**1-** (ل) [1] دا لاحقه د ځينو کلمو پـه آخر کښـې د مـصدر د جوړولـو د پـاره پيوستيږي چې دا ډول مـصدرو نـه ((لام والا)) مـصدرونه بـولي. مګـر پـه پښتو کښې د لام وا لا مصدرونو زياته برخه اصلي او وضـعي مـصدرونه دی او کوم اصل او ماخذ نه لري او يا مونږ ته نه معلوميږي. لکـه: شـړل، کتل، ساتل او داسې نور. او بله برخه لام والا مصدرونه اشتقاقي دي چې لـه بلې کلمې څخه مـاخوذ بلل کيـږي. دا راز مـصدرونه څـومره چې تـر اوسه معلوم شوي دي دا وروسته مثالونه او صورتونه لري:

الف :- هغه دي چې د شيانو او ذاتي نومو څخه جوړيږي لکه:

| | | |
|---|---|---|
| له کسي څخه کسل | له غوږ څخه نغوږل | د دې دوو مصدرو په اول کې يو "ن" هم زيات شوي دي. |
| له بوڼ څخه بوڼل | له غری څخه نغرل | |
| له داړې څخه داړل | له وت (شګاف ) څخه وتل | |
| له پسول څخه پسولل | له داغ څخه داغل | |
| له ګاڼې څخه ګاڼل | | |

په دې ډول ځينی نـور مثالونـه هم شـته چې پـه هغـو کښـې د اشـتقاق مشابهت ليدل کيږي لکه (تلی، تلل، څنی ځڼل (بـافتن چارپـائی)، ليمـه – ليـدل، خولـه – خـوړل) دغـسې (نغوتـل) چې د تحريك او اشـارې معنا ورکوي؛ ښايي چې لـه (ګوتې) څخه ماخوذوي ځکه چې اشـارت پـه ګوتـه کيږي او د ((غ، ګ)) تبديل په پښتو کښې عام دی.

ب :- هغه مصدرونه دي چې له اصواتو څخه جوړيږي لکه:

---

(1) په سنسکريت کښی (ن) د مصدر علامه ده لکه پرېږ ور تن (پرې وتل) ندن ( ناړل) هر کله چې ( ن) او (ل) هميشه يو پر بل بانديږ اوړی له دې کبله (ل) په پښتو کښی د مصدر يوه قديمي لاحقه بللی شو.

| | |
|---|---|
| له غپ څخه غپل | له وه څخه وهل[1] |
| له ټوخ څخه ټوخل | له توك څخه توكل |
| له ترپ څخه ترپلل | |
| له چوپ څخه چوپل | له پوك څخه پوكل |

ښايي چې دا مصدرونه په اصل كښې پوكل، توكل وي او بیا وروسته مخفف شوی وي.

ج :- هغه مصدرونه دي چې له صفاتو څخه جوړ شوی وي لكه:

| | |
|---|---|
| له مل څخه ملل | له مړ څخه مړل |
| له روڼ څخه روڼل | له ټك څخه ټكل، |

د :- په پښتو كښې ځینې داسې لام والا مصدرونه هم شته چې اول جزء یې فعلي نوم وي او ځانله د یو فعلي كیفیت او حالت په معنا استعمالیږي. په داسې مصدرونو كښې د اصل معلومول څه قدر اشتباه لري او په یقین نه معلومیږي چې مثلاً لوټل له ( لوټ) څخه اخستل شوی دی او كه نه خبره بالعكس ده.

مګر سره د دې زما په خیال په دغه ډول نومونو كښې كوم چې بسیط وي او لاحقه نه لري هغه د مصدر ماخذ بللی شو او كوم چې بسیط نه وي او لاحقه لري؛ هغه به غالباً له دغې مفردې كلمې څخه ماخوذ او مشتق وي. د دې قسم مصدرونو مثالونه وروسته ښودل كیږي لكه:

---

(1) ښایي چې په اول ضرب كښې به چا له خولی نه (وه) ایستلې وي نو پس له هغه به ددغه فعل د پاره وهل ایښود شوی وي.

ويی، ويل / ويارِ، ويارِل / څار، څارل / يرغل، يرغالل / لوټ، لوټل، وېش، وېشل / يون، يونل / ګوټ، ګوټل / دانګك، دانګل / زغم، زغمل / شمېر، شمېرل / چېرِ، چېرِل / زبېښ، زبېښل / ليد ، ليدل / اخېرِ، اخېرِل / تپوس، تپوسل / تول ، تلل / بول=قول ، بولل.

2- (ول) دا هم يوه مصدري لاحقه ده او د نورو کلماتو په آخر کښې د مصدرونو د جوړولو دپاره راوړل کيږي. دې قسم مصدرونو ته ( ول والا) مصدرونه وايي. په دې قسم مصدرونو کښې ځيني داسې مصدرونه شته چې اصلي رنګك لري او له کومې بلې کلمې څخه ماخوذ نه معلوميږي لکه (پرزول- ګرزول- پرِسول) لاکن د ول والا مصدرونو زياته برخه مشتقې دي او ضرور يو اصل او ماخذ لري دا رقم ول والا مصدرونه په پښتو کښې نسبتاً ډېر دي او په وروسته ډول يې د جوړېدو صورتونه او د نمونې په څېر يو څو مثالونه ښودل غوارِو.

الف :- لومړی صورت يې دا دی چې د اشياو يعنې د ليدونکو شيانو د نومو په آخر کښې ( ول) راځي او ول والا مصدرونه ترې جوړيږي لکه:

| | |
|---|---|
| له رِمنځ څخه رِمنځول | له باد څخه بادول |
| له ميخ څخه ميخول | له بار څخه بارول |
| له ګام څخه ګامول | له ځای څخه ځايول |
| له ګز څخه ګزول | له لويشت څخه لويشتول |
| له غلبيل څخه غلبېلول | له نال څخه نالول |
| له کولپ څخه کولپول | له باټ څخه باټول |
| له چاڼ څخه چاڼول | له ډانډس څخه ډانډسول |

ب :- دوهم صورت دا دی چې د بسیطو اصواتو په آخر کښې (ول) پېوستیږي او ول والا مصدرونه ورځنې تیاریږي لکه:

| | |
|---|---|
| له ډب څخه ډبول | له غرب څخه غربول |
| له غړ څخه غړول | له بنګ څخه بنګول |
| له رپ څخه رپول | له کړس څخه کړسول |
| له ډز څخه ډزول | له ترنګ څخه ترنګول |
| له ټغ څخه ټغول | له شرنګ څخه شرنګول |
| له ټوخ څخه ټوخول | له غړمب څخه غړمبول |
| له ګړ څخه ګړول | له کړنګ څخه کړنګول. |

ج :- دریم صورت دا دی چې (ول) د مجردو نومو په آخر کښې راځي، دغه مجرد نوم[1] د فعل نوم وي او که د یو حالت او کیفیت نوم وي لکه:

| | |
|---|---|
| له لېو څخه لېوول | له ویرې څخه وېرول |
| له میچ څخه مېچول | له ځور څخه ځورول |
| له ټال څخه ټالول | له رنځ څخه رنځول |
| له غوبل څخه غوبلول | له جنګ څخه جنګول |
| له ربړ څخه ربړول | له شرم څخه شرمول |
| له سینګار څخه سینګارول | له رواج څخه رواجول |
| له تاوان څخه تاوانول | له پور څخه پورول |
| له ډار څخه ډارول | له لور (روا داری) څخه لورول |

---

(1) مجرد نوم هغه دی چې لیدونکی شی نه وي او مسمی یې خارجی وجود نه لري دې ډول نوموته د کیفیت نومونه هم وایي.

د :- ځلورم صورت یې دا دی چې ((ول)) د صفاتو په آخر کښې راوړل کیږي لکه:

| | | |
|---|---|---|
| له تور څخه تورول | له اوږد څخه اوږدول | له مات څخه ماتول |
| له پاك څخه پاکول | له جګ څخه جګول | له ودان څخه ودانول |
| له زیات څخه زیاتول | له ډېر څخه ډېرول | له وران څخه ورانول |
| له آسان څخه آسانول | له لږ څخه لږول | له یاد څخه یادول |
| له هېر څخه هېرول | له سوړ څخه سړول | له تود څخه تودول |

هـ :- کله د (ول) علامه د فعل حال د فعلي مادې په آخر کښې راوړل کیږي او ول والا مصدرونه ترې جوړیږي او خالی دا وروسته مثالونه لري. لکه:

| | |
|---|---|
| له خیژي څخه خېژول | له نښلي څخه نښلول |
| له الوزی څخه الوزول | له اوړي څخه اوړول |
| له کښېني څخه کښېنول | له خوري څخه خورول |
| له رغړي څخه رغړول | له لولي څخه لولول |
| له ځملي څخه ځملول | له لېږدي څخه لیږدول |

ز :- کله د مصدر د فعلي مادې په آخر کښې (ول) پیوستیږی او ول والا مصدرونه ځنې لاس ته راځي چې خالی دا یو څو مثالونه لري لکه:

| | |
|---|---|
| له خندل څخه خندول | له لامبل څخه لمبول |
| له ژړل څخه ژړول | له زانګل څخه زنګول |
| له غپل څخه غپول | له نڅل څخه نڅول |
| له ټوخل څخه ټوخول | له دانګل څخه دنګول |

له اغوستل څخه اغوستول　　　له غړمبل څخه غړمبول

**3-** (يدل) دا هم يوه مصدري لاحقه ده، چې اکثر د لازمو مصدرونو[1] د جوړولو د پاره د کلماتو په آخر کښې راوړل کيږي. دې قسم مصدرونو ته (يدل والا) مصدرونه وايي.

"ېدل والا" مصدرونه کټ مټ د "ول والا" مصدرونو پشان دغه وړاندې شپږ صورتونه لري. ديدل والا مصدرونو د اشتقاق او جوړونې لار آسانه ده. په ټولو ((ول والا)) مصدرونو کښې چې د (ول) په ځای (يدل) راوړی شي نويدل والا مصدرونه ترې جوړيږي. خو سره د دې هم د زيات وضاحت دپاره د يدل والا مصدرونو د جوړېدو او اشتقاق صورتونه لنډ ډول لاندې بيانيږي:

الف :- د ذات د نومو په آخر کښې ( يدل) راوړل کيږي لکه:

له زمنځ څخه زمنځېدل　　　له ګام څخه ګامېدل

له بار څخه بارېدل　　　له ګز څخه ګزېدل

له ځای څخه ځايېدل　　　له چاڼ څخه چاڼېدل

ب :- د اصواتو په پای کښې (يدل) راځي او يدل والا مصدرونه ترې جوړيږي لکه:

له ډب څخه ډبېدل　　　له غرړ څخه غرړېدل،

له شرنګ څخه شرنګېدل　　　له بنګ څخه بنګېدل

له ټغ څخه ټغېدل　　　له ټوخ څخه ټوخېدل.

ج :- د مجردو نومو په پای کښې (يدل) پيوستيږي لکه:

---

(1) د اورېدل او لوربدل مصدرونه استثناء متعدی دی.

له ټال څخه ټالېدل		له ربړ څخه ربړېدل

له رنځ څخه رنځېدل		له غوبل څخه غوبلېدل

له لېو څخه ليوېدل		له جنګ څخه جنګېدل

له رواج څخه رواجېدل.

د :- د صفاتو په پای کښی (يدل) راوړل کيږي لکه:

له تور څخه تورېدل		له جګ څخه جګېدل

له ډېر څخه ډېريدل		له سوړ څخه سړېدل او داسې نور.

ه :- د مصدر او فعل حال له فعلي ما دې څخه لکه:

له رغړي څخه رغړېدل		له اوړي څخه اوړيدل

[1] له خندل څخه خندېدل		له ژړل څخه ژړېدل

له زانګل څخه زنګيدل		له ټوخل څخه توخېدل او نور.

## د حاصل مصدر پسينه توري

هغه نومونه چې فعلي معنا لري او له مصدر څخه جوړيږي؛ د مصدر حاصل بولي. دا نومونه ځينی په خپله د مصدر په معنا راځي مګر فرق دومره دی چې له مصدر څخه پکښې اسمي رنګ زيات وي لکه (وهنه، ليدنه، کتنه) او ځينی د مصدر اثر، حالت او فعلي کيفيت ښکاره کوي لکه ( خندا ، ژړا) چې د خندلو او ژړلو پر حالت او کيفيت دلالت کوي.

---

(1) لاکن د (خېژول، الوزول، ځملول، نښلول، کښېښول، خورول، لولول، اغوستول) په مصدرونو کښې يدل والا مصدرونه ، نه استعماليږي).

هر کله چې په پښتو کښې د حاصل مصدر اکثرې لاحقې د دغو دواړو معنا ګانو د پاره په شریك ډول راځي له دې کبله دغه دواړه قسمونه یو ځای په لاندې ډول ښودل کیږي.

**1-** (نه) دا لاحقه بې د ځینو خصوصي مصدرونو څخه د ټولو مصدرو په آخر کښې د لام پر ځای راځي او د حاصل مصدر نومونه ترې جوړیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له وهل څخه وهنه | له لټول څخه لټونه |
| له ختل څخه ختنه | له ټولول څخه ټولونه |
| له وتل څخه وتنه | له درېدل څخه درېدنه |
| له ساتل څخه ساتنه | له ټولېدل څخه ټولېدنه [1] |

**2-** ( خفي ه) دا توری دیدل والاو ځینو لام والا مصادر و په پای کښې د مصدر د لام پر ځای راوړل کیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له غورځېدل څخه غورځیده | له لیدل څخه لیده |
| له پوهېدل څخه پوهېده | له کتل څخه کاته |
| له لمبېدل څخه لمبېده | له اغوستل څخه اغوسته |
| له پاځیدل څخه پاڅېده | له ختل څخه خاته |

(1) دا دواړه قسمه په خپله د مصدر په معنا استعمالیږي، خصوصاً دوهم صورت خو کټ مټ یو مخفف مصدر دی.

**3-** (ښت) دا نښکه هم د حاصل مصدر لاحقه ده او د ځینو یدل والا مصادرو په پای کښې د (یدل) په عوض راغلې ده او دا مثالونه پکښې موجود دي:

له مړېدل څخه مړښت — له درنېدل څخه درنښت
له جوړېدل څخه جوړښت — له یادېدل څخه یادښت
له لګېدل څخه لګښت — له سمېدل څخه سمښت
له ځربېدل څخه ځربښت — له چلېدل څخه چلښت
له سړیدل څخه سړښت — له ارزیدل څخه ارزښت
له لوئېدل څخه لویښت — له ګرانېدل څخه ګرانښت

**4-** (ون) دا پسینه توری په ځینو مصادرو کښې راځي او د مصدري علامو پر ځای استعمالیږي او دا لاندی مثالونه پکښې موجود دي:

له تړل څخه تړون — له لټول څخه لټون
له ګنډل څخه ګنډون — له بدلول څخه بدلون
له ګنډل څخه ګنډون — له ګډول څخه ګډون
له خرڅول څخه خرڅون — له سمول څخه سمون
له لمسول څخه لمسون — له ډکول څخه ډکون
له لنګېدل څخه لنګون — له ګرځول څخه ګرځون (قی)
له ډډېدل څخه ډډون

**5-** (ن) یوازې نون هم په یدل والا مصدرو او یو نیم لام والا مصدرو کښې د لام پر ځای د فعلي مادې په آخر کښې پیوستیږي او د حاصل مصدر نومونه ترې جوړیږي لکه:

له رغېدل څخه رغېدن — له غورځېدل څخه غورځېدن

له چلېدل څخه چلېدن | له لیدل څخه لیدن
له اوسیدل څخه اوسېدن | له اغوستل څخه اغوستن [1]

**6-** (نګ) دا لاحقه په ځینو محاورو کښې د حاصل مصدر د جوړولو د پاره استعمالیږي او په یدل والاو یو نیم لام والامصدر کښې د (ل) پر ځای راوړل کیږي لکه:

له اوسېدل څخه اوسېدنګ | له چېبل څخه چېنګ
له رغېدل څخه رغېدنګ | له تلل څخه تلنګ
له پاڅېدل څخه پاڅېدنګ | له غورځیدل څخه غورځنګ

(په دې مثال کښې (نګ) دیدل پر ځای راغلی دی)

**7-** (اك) دا لاحقه هم د فعلي مادې په آخر کښې د حاصل مصدر د جوړوني دپاره راځي او دا وروسته مثالونه لري لکه:

له خوړل څخه خوراك | له چېبل څخه چېباك
له ژول (ژوند کول) څخه ژواك، | له ځکل څخه ځکاك
له پخسیدل څخه پخساك | له تپېدل څخه تپاك.

**8-** (**1**) دا علامه د ځینو لام والا ویدل والا مصادرو په آخر کښې د مصدري علامې پر ځای راځي او د مصدر حالت او کیفیت ښکاره کوي او دا مثالونه پکښې مستعمل دي:

له خندل څخه خندا | له کنځل څخه کنځا | له ښشنل څخه ښشنا

---

(1) څلورم او پنځم قسم نومونه له اصلي مصدر سره ډېر نزدېوالی لري ځکه چې په دوارو کښې یوازې (ل اون) سره بدل شوي دي نور یو شی دي.

| | | |
|---|---|---|
| له ژړل څخه ژړا | له ښکلل څخه ښکلا | له غړمبل څخه غړمبا |
| له نڅل څخه نڅا | له لمبل څخه لمبا | له ګړېدل څخه ګړېدا = ګړا |
| له غپل څخه غپا | له زغاستل څخه زغستا | له ځلېدل څخه ځلېدا = ځلا |
| له شڼل څخه شڼا | له مشغولېدل څخه مشغولا | له رپېدل څخه رپېدا |

**9-** (ښکاره "ه") دا توری د ځينو مصادرو د فعلی ما دې په آخر کښې د مصدري علامو پر ځای راوړل کيږي او دا وروسته مثالونه پکښې مستعمل دي:

| | | |
|---|---|---|
| له تړل څخه تړه | له ژوبلل څخه ژوبله | له ټولول څخه ټوله |
| له ګټل څخه ګټه | له زغاستل څخه زغاسته | له جوړېدل څخه جوړه (صلح) |
| له ښکل څخه ښکه | له لټول څخه لټه | له پېښېدل څخه پېښه |
| له نښتل څخه نښته | له لمسول څخه لمسه | له تېښتېدل څخه تېښته |
| له ديکل څخه ديکه | له روغېدل څخه روغه (صلح) | له بدلول څخه بدله [1] |

**10-** (ی) ملينه (ی) هم په ځينو مصدرو کښې د مصدري علامو پر ځای راځي او د حاصل مصدر نومونه ترې جوړيږي چې مثالونه يې دا دي:

له غورځېدل څخه غورځی      له خلاصېدل څخه خلاصی

(1) د اتم او نهم لمبر نومونو اشتقاق له مصدر څخه يقيني نه دی، کېدی شي چې خبره بالعکس مصدر له دغو نومو څخه مشتق وي.

له برابرېدل څخه برابری        له ودانېدل څخه ودانی

له سمېدل څخه سمی        له ورانېدل څخه ورانی

له سول څخه سوی        له خرڅېدل څخه خرڅی.

تبصره: په پښتو کښې د حاصل مصدر د پاره ځینې نورې لاحقې هم شته، مګر یو یا دوه مثاله لري دا لاحقې هم ټولې د مصدر د فعلي مادې په آخر کښې د مصدري علامو پر ځای راځي او په وروسته ډول بیانیږي:

**11-** (ات) لکه: له ګټل څخه ګټات له بایلل څخه بایلات.

**12-** (ت) له لګیدل څخه لګت (مصرف)        له بچېدل څخه بچت (پس اندازه)

**13-** (او) له چلېدل څخه چلاؤ        له لګېدل څخه لګاو.

**14-** (انه) له اوسېدل څخه اوسېدانه        له رغېدل څخه رغېدانه.

**15-** (ڼه) له رغول څخه رغاوڼه (ساختمان)، له ټیکاوېدل څخه ټیکاوڼه.

**16-** (نا) له ویل څخه وینا        له بریښیدل څخه بریښنا .

**17-** (اره) له سکوندېل څخه سکو نډاره

**18-** ( ار) له ټینګېدل څخه ټینګار        له چینګېدل څخه چینګار.

**19-** ( ان) له لګیدل څخه لګان        له ټکېدل څخه ټکان.

**20-** (ند ) له چلېدل څخه چلند .

**21-** (ندی) له رپېدل څخه رپندی (لرزه).

**22-** (لاو) له خرڅول څخه خرڅلاو.

**23-** (ګنه، ګه) له اوسېدل څخه استوګنه، استوګه.

**24-** (وب) له پړسېدل څخه پړسوب.

## د آلې د نوم لاحقې

آله په پښتو کښې پر دوه ډوله ده. یوه اصلي ده لکه: اره، ترښځ، رنده او نور او بله مشتقی ده. د مشتقې آلې نومونه درست لـه مصدر څخه جوړیږي او دا وروسته صورتونه او لاحقې لري:

**1**. (ونی) دا لاحقه په متعدي مصادرو کښې د لام پر ځای راوړل کیږي او د آلې نوم ترې جوړیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له لوبول څخه لوبوونی | له پاکول څخه پاکوونی |
| له چاڼول څخه چاڼوونی | له غوڅول څخه غوڅوونی |
| له لګول څخه لګوونی | له توړل څخه توړونی |
| | له نیول څخه نیوونی |

**2-** (نی) یوازې: (نی) هم د فعلي مادې په آخر کښې د آلې د نامه د پاره راځي لکه : لـه شـرنګول څخـه شـرنګنی او (شـرنګانی) هـم استعمالیږئ له ټنګول څخه ټنګنی.

**3-** (ی) یوازې ملینه (ی) هم د فعلي مادې په آخر کښې د آلې د نامه د پاره راتلی شي لکه: (نوسی) چې غالباً د نیسل له مصدر څخه د (ی) په واسطه جوړه شوې ده [1]

تبصره: د اسم آلې د نامه د جوړولو د پاره کله مفعول هم ورسره را وړل کیږي لکه : اور لړونی– مچشړونی. مګر دا بیا مرکبه آله بولي. دغه

---

(1) د آلې دا درې واړه صورتونه چې د غیر ذیروح د پاره استعمال شي نو آله بلله کیږي او که د ذیروح د پاره راشي نو صفت یې بولي.

شان (ی) هم اکثراً د مرکبې آلې د جوړښت د پاره استعمالیږي لکه: لاس پاکی، مچشړی، خټ موښی (ګل ماله) مچوژی او نور.

## د صفاتو جوړونه

صفات پر دوه ډوله دي، يو هغه دی چې د يو شي او ذات حالت او وصف بيان کړي لکه (مشر، پوه) او بل هغه دی چې يوازې وصف او حالت څرګندوي او پر يو شي او ذات باندې دلالت نه کوي لکه (مشرتوب، پوهه) دا دواړه قسمه صفات په پښتو کښې داشتقاق او جوړولو جلا جلا لاحقې لري، مونږ اصطلاحاً دغه اول قسم ته صفات او دوهم قسم ته مجرد وصفونه وايو.

ذاتي او توصيفي صفات بيا د اشتقاق په لحاظ پر دوه ډوله دي، يو هغه دی چې له اسم او بسيط صفت څخه د لاحقو په لګولو جوړيږي او بل هغه دی چې له مصدر څخه د يو عمومي قانون موافق د لاحقو په واسطه اشتقاقيږي. دغه اول قسم ته نسبتي[1] او دوهم قسم ته فعلي صفات وايو. په نسبتي صفاتو کښې منسوب اليه معلوم او يوه مستقله جلا کلمه وي. نسبتي صفات په پښتو کښې ډېرې او زياتې لاحقې لري، دا لاحقې عموماً د اسم او صفت په آخر کښې راځي او نسبتي صفت ترې جوړيږي. لکه (اغزن، اومږی) چې اول (اغزی) او دوهم (اوم) ته منسوب دی. مګر دومره خبره ده چې په نسبتي صفاتو کښې د بل يو صفت د نسبت مثالونه کم او د اسم د نسبت مثالونه ډېر دي.

دا د نسبتي صفاتو لفظي خصوصيت وُ، هر څه چې يې معنوي خصوصيات دي نو هغه څه قدر مفصل دي، ځکه چې په هره علامه او

---

[1] نسبتي صفات د کومې خاصې زمانې پورې تعلق نه لري او په دې لحاظ دايمي صفات هم بلل کيږي.

لاحقه کښې ځانله ځانله معنوي اختصاص لیدل کیږي. سر بېره پر دې، یوه یوه لاحقه د ډېرو معنا ګانو د پاره راځي او په یوه ځای کښې یوه معنا او په بل ځای کښې بله معنا ورکوي.

مثلاً "جن" چې په (نمجن) کښې د لرلو په معنا او په (غمجن) کښې د کولو په معنا دی. نمجن هغه ځای ته وایي، چې نم لري او غمجن هغه څوك دی چې غم کوي.

دغسی (ن) چې په (جګړن) کښې فعلي یعنی د کولو معنا، او په (خیرن) کښی د لرلو معنا افاده کوي. مقصد دا دی دغه لاحقې چې د هرې کلمې سره راوړلی شي؛ نو د هغی کلمې سره یوه مناسبه او وړه معنا ترې اخستل کیږي مګر په عمومي ډول د پښتو په نسبتي صفاتو کښی دا وروسته معنا ګانې لیدل کیږي.

**1-** د کولو او فعل عامه معنا لکه: ختګر، کبر جن، کړتن، شوکمار، چې ختې، کبر، کړتې او شوکه کوي.

**2-** د یو خاص فعل معنا چې هغه د لاحقې د مخه کلمې سره تناسب ولري لکه: غوبه، خربه، دروازه وان هغه څوك چې غواپیایي، خره چلوي او دروازه ساتي.

**3-** د لرلو، مالکیت او مصاحبت معنا لکه : ښوره جن– شګلن، دولت من– واکمن، پنډوالا، هغه چې ښوره، شګه، دولت لري، د واك خاوند وي او پنډ ورسره وي.

**4-** داوسیدلو، وطنیت او قومیت معنا لکه: کامه وال – کابلی، سلیمان خېل هغه څوك چې په کامه کښی اوسي، کابل یې وطن او سلیمان خېل

يې قوم وي. پرته له دې څخه هره لاحقه ځینی خصوصي معناوې هم لري
چې هغه به په خپل خپل ځای کښې په لنډ صورت وښودلی شي.

## د نسبتي صفاتو لاحقې

د نسبتي صفاتو ځينې لاحقې له خپلې مادې څخه څه نور صورتونه او متفرعات لري چې هغه به هم ورسره په خپل خپل ځايکښې بيانيږي.

ټول نسبتي صفات د اسم او صفت په آخر کښې د يوې لاحقې په لګولو جوړيږي او دا دی په وروسته ډول يې بيانول غواړو.

**1-** (ګر) دا لاحقه د نومو په آخر کښې د فعل، کولو او د يو نيم خاص فعل په معنا راځي لکه:

| | |
|---|---|
| له ختې څخه ختګر | له امانت څخه امانت ګر چې (امانت ساتی) |
| له کوډې څخه کوډګر | له بزې څخه بزوګر (چې وزې څروي) |
| له دارو څخه داروګر | له ملازې څخه ملازګر (متملق) |
| له غلا څخه غلاګر | له ښېبوې څخه ښيبوه ګر (چې ډول کوي) |
| له جوارۍ څخه جوارګر | له مشين څخه مشين ګر (چې ماشين چلوی) |

تبصره: د دې لاحقې سره نږدې او مربوطې لاحقې هم شته، مګر مثالونه يې لږ دي او وروسته د خپلو ټولو مستعملو مثالونو سره ښودل کيږي:

2- الف :- (ګير) د نومو په آخر کښې د فعلي معنا د افاده کولو د پاره راوړل کيږي لکه:

| | |
|---|---|
| له سوال څخه سوالګير | له پروا څخه پروا ګير |
| له تماشې څخه تماشګير | له بار څخه بار ګير(د بار وړلو څاروی) |

له دعوې څخه دعوه ګیر | له تاو څخه تاوګیر
له هوا څخه هوا ګیر | له باد څخه باد ګیر

**3-** ب :- (ګرى) د اسم او صفت په آخر کښې راځي لکه:

له لو څخه لوګرى | له ګواښ څخه ګواښ ګرى
له دم څخه دم ګرى | له مل څخه ملګرى | پــه دې دوو صــفتونو
له وار څخه وار ګرى | له تېل څخه تېل ګرى | کې فعلي معنا نشته

**4-** ج : (ګړى) دا لاحقه د اسم او صفت په آخر کښې راغلې ده لکه:

له ژرندې څخه ژرنده ګړى      له منځ څخه منځګړى،
له دریم څخه درېمګړى      له نیم څخه نیمګړى.

**5-** د: (ګرندى) د نومو په پاى کښې د فعلى معنا [1] د افـاده کولـو د پـاره راځي لکه:

له تلوار څخه تلوارګرندى      له اشر څخه اشر ګرندى،
له وېش څخه وېش ګرندى      له دېوال څخه دیوال ګرندى.

**6-** (جن) دا لاحقه د نومو په آخر کښې راځى چې په لیـدونکو نومـو کښـې غالباً دلرلو او په نالیدونکو نومو کښې د کولو یا د بل خاص فعـل معنا ورکوى لکه:

له نم څخه نمجن | له کبر څخه کبر جن | له ویر څخه ویر جن
له ښورې څخه ښوره جن | له تاو څخه تاوجن | له هېرې څخه هېر جن

---

(1) هغه ټول صفات چې فعلي معنا ولري په هغو کښې به اول جزء د مفعول حیثیت لري او دا يې د پيژندلو لار او طريقه ده.

| | | |
|---|---|---|
| | | (فراموش کار) |
| له سپړې څخه سپړجن | له قهر څخه قهر جن | له دروغ څخه دروغجن |
| | له ورم څخه ورم جن | له غم څخه غم جن |

تبصره : د (جن) مربوطې لاحقې (ځن، ژلی) دی چې یو څو مثاله پکښې موجود دي :

**7**- الف :- (ځن) لکه :

| | |
|---|---|
| له لامبو څخه لامبوځن | له تورې څخه تورځن، |
| له ښکار څخه ښکارځن | له ځنګ څخه ځنګزن. |

**8**- ب :- (ژلی) [1]

| | |
|---|---|
| له پر هر څخه پرهرژلی | له ویر څخه ویرژلی. |

**9**- (لن) دا علامه د لرلو او کولو د نسبت د پاره غالباً د هغو نومو په پای کښې راځي چې په (ه) مختوم وي لکه:

| | |
|---|---|
| له اوبه څخه او بلن | له زوې څخه زولن |
| له شګی څخه شګلن | له اوښکې څخه اوښکلن |
| له غوښې څخه غوښلن | له خوږ څخه خوږلن ( په ایرو پټ اور) |
| له سیوري څخه سورلن | |

**10**- (من) دا لاحقه د مالکیت او صاحبیت د پاره د نالیدونکو یعنی غیر مرئي نومو په آخر کښې راځي لکه:

| | |
|---|---|
| له غیرت څخه غیرت من | له واك څخه واکمن |
| له دولت څخه دولت من | له ښاد څخه ښاد من |

(1) د ځ، ج اول "ن" په پښتو کښې تل په یو بل باندی بدلیږي لکه زبه، جبه، لمراو نمر.

| | |
|---|---|
| له شته څخه شته من | له کسر څخه کسر من (معیوب) |
| له سود څخه سود من | له میرځي څخه میرځمن |
| له خوږ څخه خوږ من | له اندېښنې څخه اندېښمن |
| له ستر څخه ستر من (سترمنه) | |

**11-** (ن) دا توری د نسبتي صفت د جوړولو د پاره د مادي او غیر مادي نومو په آخر کښی راوړل کیږي او دلرلو ، کولو او خاص فعل معنا افاده کوي لکه:

| | |
|---|---|
| له خیري څخه خیرن | له جګړې څخه جګړن |
| له پم څخه پمن | له خاپوړي څخه خاپوړن |
| له ژاولې څخه ژاولن | له کړ کېچ څخه کړ کېچن |
| له غوښې څخه غوښن | له ډار څخه ډارن |
| له غوټې څخه غوټن | له تیز څخه تیزن |

**12-** (مار) دا لاحقه د فعلي معنا د پاره زیاته استعمالیږي او څه قدر مبالغه هم ښیي او اکثراً د نومو په آخر کښی راځي لکه:

| | |
|---|---|
| له داړې څخه داړه مار | له ټوکې څه ټوکمار (مسخره) |
| له ګوندۍ څخه ګوندي مار | له چړچې څخه چړچه مار (عیاش) |
| له جرګی څخه جرګه مار | له ونډۍ څخه ونډي مار (قصاب) |
| له چوغلي څخه چوغلي مار | له ډوډۍ څخه ډوډي مار |
| له دوکې څخه دوکه مار | له ختې څخه ختمار |

**13-** (ور) دا ننبکه غالباً د مادي او مرئي ( لیدونکو) نومو په آخر کښې راځي او دلرلو معنا افاده کوي مګر څه قدر مبالغه او زیاتوالی ترې هم معلومیږي یعنی دور سره پیوست اسم ظاهري غټوالی او ډېر والی ښیي لکه:

| | |
|---|---|
| له داړې څخه داړه ور | له ښانګې څخه ښانګه ور |
| له ګېډې څخه ګېډه ور | له غوږ څخه غوږ ور |
| له خېټې څخه خېټه ور | له ښکر څخه ښکر ور |
| له تنې څخه تنه ور | له شونډې څخه شونډه ور |
| له څنې څخه څنه ور | له غوښې څخه غوښه ور |
| له سور څخه سرور | له پی، څخه پیوره غوا (ګاو شیری) |

دا قسم صفات کله د وصفي معنا د مبالغې او زیاتوالي دپاره هم راځي یعنی مطلب پکښې د یو وصف او حالت مبالغه بیانول وي لکه:

له ژبې څخه ژبه ور (لسان)، له خولې څخه خوله ور، له زړه څخه زړه ور، له مخ څخه مخور (معزز). په دې قسم صفاتو کښې (غاښور) د یوې آلې نوم دی چې ډېر غاښونه لري.

**14-** (بون= به) دا لاحقې دواړه یو شی دي او "به" د "بون" مخفف صورت دی چې د محافظت، ملکیت او څښتن ولی، په معنا راځي او اکثر د مادي او مر ئي نومو په آخر کښې راوړل کیږي لکه :

| | |
|---|---|
| له شیر څخه شیربون | له ګډ څخه ګډبه |
| له زمري څخه زمربون | له آس څخه اسبه |

له خر څخه خربون — له اوښ څخه اوښبه

له اوښ څخه اوښبون — له کور څخه کور به

له غويي څخه غوبه — له لرګي څخه لرګبه ( هيزم کش)

له ختې څخه ختېبه — له خس څخه خسبه

**15**- (وان)[1] دا علامـه د محافظـت او مالـك تـوب پـه معنـا د مـادي او ليدونکو شيانو د نومو په آخر کښې راوړل کيږي لکه:

له باغ څخه باغوان — له جياز څخه جيازوان

له جالې څخه جاله وان — له دروازې څخه دروازه وان

له پادې څخه پاده وان — له ګورم څخه ګوروان (د ګـورم مـيم پکښـې حذف شوی دی)

له ګاډۍ څخه ګاډي وان — له موټر څخه موټروان

له بګۍ څخه بګي وان — له ګروي څخه ګريوان (چې د ګروي محافظ وی)

**16**- (وال) دا لاحقـه د کليـو او ځـايو د نومـو پـه آخـر کښـې د اسـتوګنې او وطنيت د نـسبت د پـاره راځي او د هغـو نومـو سره راوړل کيـږي چې پـه امدادي حروفو مختوم وي لکه:

کامه- کامه وال — جنوبي – جنوبي وال

باندہ- باندہ وال — لواړګی – لواړګي وال

---

(1) ((وان)) او ((بون)) په لفظ او معنا دواړو کښې سره نزدې دي. ((وان)) په سنسکريټ کښې هم د محافظت لاحقه ده.

| | |
|---|---|
| مشرقي – مشرقي وال | کلی – کلی وال |

دا لاحقه په ځينو نومو کښې د فعلي معنا ګانو نسبت هم څرګندوي يعنی د کولو يا يوړل خاص فعل معنا ورکوي لکه:

| | |
|---|---|
| جوپه – جوپه وال | آتړ – آتړ وال |
| بنګړی – بنګړي وال | انډی – انډيوال |
| هګۍ – هګۍ وال | پجه – پجه وال |
| کوټ – کوټوال | |

**17-** (والا) دا علامه د مالك توب او ښبنتن ولۍ د نسبت د پاره د نومو په آخر کښې راوړل کيږي لکه:

خـروالا – آس والا – کـور والا – پنـډ والا – کـډ والا – پـور والا – چـپن والا– او کله د يو شي د پلورونکي معنا هم ورکوي لکه: سابه وال– ميوه والا او نور.

**18-** (يالی) دا لاحقه دلرلو او کولو په معنا د مادي او غير مادي نومو په آخر کښې استعماليږي لکه:

| | |
|---|---|
| له ننګ څخه ننګيالی | له برم څخه برميالی |
| له نوم څخه نوميالی | له بري څخه بريالی |
| له جنګ څخه جنګيالی | له تورې څخه توريالی |
| له پت څخه پتيالی | له زغرې څخه زغر يالی ( زره دار) |
| له بخت څخه بختيالی | له غوټۍ څخه غوټيالی |
| له دود څخه دوديالی | له برګۍ څخه برګيالی |

| | |
|---|---|
| له هوډ څخه هوډيالی [1] | له نتی څخه نتيالۍ (چې نتکۍ لري) |
| له خبر څخه خبريالی (خبر يال) | له غور څخه غوريالی (چې غورلری) |

**19-** (نی) دا علامه د زمانې، ځای او داسې بل نسبت د پاره د ظروفو په آخر کښې راوړل کيږي لکه:

| | |
|---|---|
| له اوس څخه اوسنی | له پاس څخه پاسنی |
| له غرمې څخه غرمنی | له لاندی څخه لاندينی |
| له بيگا څخه بيگانی | له کور څخه کورنی |
| له مياشت څخه مياشتنی | له منځ څخه منځنی |
| له کال څخه کالنی | له ړومبي څخه ړومبنی |

دا لاحقه د ځينو نورو نومو سره هم راځي او فعلي يا کومه بله معنا افاده کوي لکه:

| | |
|---|---|
| له نوغي څخه نوغنی (نشانه دار) | له غل څخه غلنۍ پيشو |
| له ټکي څخه ټکنی (متردد) | له رښتيا څخه رښتيانی |
| له ميرې څخه ميرنی | له ميړه څخه ميړنی، |
| له سکه څخه سکنی او نور. | |

تبصره :- د دې لاحقې سره مربوطې لاحقې دا دي:

**20-** الف :- (ونی) لکه:

(1) هوډيالی ضد ناك ته وايي لکه د عبدالقادر په دې مسرع کښی (هوډيالی دی چې يې کښيينوم ولاړ شي)

له مرګ څخه مرګونی — له برغ څخه برغونی

له غبرګ څخه غبرګونی — له حرام څخه حرامونی

له باد څخه بادونی (زکام)، — له مرستې څخه مرستونی

(فعلې معنا افاده کوي).

**21-** ب (انی) لکه : له سیل څخه سیلانی، له کرل څخه کرلانی (زارع)

**22-** (ین) دا لاحقه د شیانو او اجناسو د نومو په پای کښې زیاتیږي او د یو شي نسبت اصل او جنس ته ښیي لکه:

| | |
|---|---|
| له وړی څخه وړین | له متې څخه متین |
| له تار څخه تارین | له غنم څخه غنمینه= غلمینه ډوډی |
| له وریښم څخه وریښمین | له اوربشې څخه اوربشینه |
| له مس څخه مسین | له غوړ څخه غوړین (په دی دواړو |
| له زر څخه زرین | لـــه مـــالګې څخـــه مالګین — مثالونو کښې دلرلو نسبت شوی دی) |
| له خاورې څخه خاورین | له لونګ څخه لونګین |
| | (د صفتي معنا په لحاظ اسم ګرځیدلی دی) |

**23-** (یز) دا علامه د نومو او اعدادو په آخر کښې راځي او د یو شي نوعیت او عددي نسبت ښکاره کوي لکه!

| | |
|---|---|
| له ګلې څخه ګله ئیز غویی | له خامتا څخه خامتا ئیزه بړستن |
| له چرې څخه چره ئیز ټوپك | له دوه بند څخه دوه بندیزه اګی |
| له کاڼې څخه کاڼیزه ځمکه | له څلور څخه څلوریزه (رباعی) |

| | |
|---|---|
| له وار څخه واريزه تبه | له دوه څخه دوه ئيز (مثنوی) |
| له للمي څخه للمهٔ ئيز | له لس څخه لسيز نوټ |
| له اړخ څخه اړخيزه تمانچه | له شل څخه شليز نوټ |

ياد ګيرنه: د (يز) لاحقه د صفاتو په آخر کښی د زيات وضاحت دپاره راځي لکه: له غور څخه غوريز، له مخور څخه مخوريز،
له لومړي څخه لومړيز.

**24-** (يا) دا نښکه د ځينو نومو او صفاتو په آخر کښی راځي او نسبتي صفت ترې جوړيږي لکه:

| | |
|---|---|
| له جل څخه جليا | له دود څخه دود يا (قانون دان) |
| له آري څخه آريا (اصيل) | له مل څخه مليا |
| له بس څخه بسيا (کافی) | له وربدل څخه وريا (باران) |
| له کس څخه کسيا (ميده) | له لګېدل څخه لګيا[1] |

(1) په دې وروسته دوه مثالونو کښی (يا) د فعلي مادې په آخر کښې زياته شوې ده.

**25-** (و معروف) دا توری د نومو په آخر کښی راځي او اکثر د کولو او لرلو معنا افاده کوي، سر بېره څه قدر مبالغه هم پکښی لیدل کیږي. لکه:

| | |
|---|---|
| له کړتې څخه کړتو | له لاړې څخه لاړو(چې لاړې یې بهیږي) |
| له لاپې څخه لاپو | له خیټې څخه خیټو |

| | |
|---|---|
| له ښار څخه ښارو | له غوړ څخه غوړو |
| له کړاو څخه کړاوو | له بریت څخه بریتو |
| له خرړاوې څخه خرړاوو | له داړې څخه داړو |

تبصره: د دې لاحقې سره مربوطې لاحقې دا وروسته دي:

**26-** الف (مجهول و) لکه:

له پاړس څخه پاړسو          له ښنت څه ښنتو

له دېګان څخه دېګانو

**27-** ب (اوو) په دې علامه کښې د مبالغې معنا هم زیاته ده لکه:

له جګړې څخه جګړاوو          له خرخ څخه خرخاوو

له لګېدل څخه لګاوو (خراج)          له پنډ څخه پنډاوو

(چې پونډې يې غټې وي).

---

**28-** (معروفه ی) دا توری هم د نومو په آخر کښې پیوستیږي او د فعلي معنا د افاده کولو د پاره ترې ذاتي صفت جوړیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له رباب څخه ربابي | له باور څخه باوري |
| له چرس څخه چرسي | له لګښت سره لګښتي |
| له پلك څخه پلکي | له ډانډس څخه ډانډسي (نداف) |
| له پنډ څخه پنډي (جوالی) | له ځېل څخه ځېلي |
| له ډول څخه ډولي | له چل څخه چلي |
| له چړ څخه چړي (دریوزه) | له ټوکې څخه ټوکي |

**29**- (ملینه ی) دا نښکه د ځایو د نامو په آخر کښې چې په صحیح حرف ختم وي راځي او د استوګنې او وطنیت نسبت ترې مرادیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له کابل څخه کابلی | له پېښور څخه پېښوری |
| له ننګرهارڅخه ننګرهاری | له جلال آباد څخه جلال آبادی |
| له لوګر څخه لوګری | له کونړ څخه کونړی |
| له قندهار څخه قندهاری | له پغمان څخه پغمانی |

دا لاحقه د ځینو مجردو نومو په آخر کښې هم راځي مګر په فعلي معنا دلالت کوي لکه:

له مکر څخه مکری، له لوڅخه لوی

له تروېت څخه ترویتی (منجم) او ښایی چې ځری (جاسوس) لـه (ځیـر) څخه او ژوندی له ژوند څخه اخستل شوی وي.

یادونه: ملینه (ی) د یو صفت په آخر کښې د زیات وضاحت د پاره استعمالیږي لکه:

له ګوډ څخه ګوډی له شل څخه شلی

لـه بد څخه بدی له نیك څخه نیکی.

مګر په دې صورتونو کښې تقریباً یو اسمي کیفیت پیدا کوي.

**30**- (خیـل) دا لاحقـه د سـړو او اشخاصـو د نومـو پـه پـای کښـې د قـومي نسبت د ښودلو او بیانولو د پاره استعمالیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له سلیمان څخه سلیمان خیل | له موسی څخه موسی خیل |
| د عثمان څخه عثمان خیل | له عیسی څخه عیسی خیل |
| له جبار څخه جبار خیل | له سلطان څخه سلطان خیل |

**31**. (زی) دا لاحقه هم په پورته ډول د قوم او قبیلې د نسبت د پاره استعمالیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له محمد څخه محمد زی | له یوسف څخه یوسف زی |
| له بارك څخه بارکزی | له سدو څخه سدوزی |
| له احمد څخه احمد زی | له اچك څخه اچکزی |

دغه شان د خپلوانو د نومو په آخر کښې هم دزوی والي د نسبت د پاره راوړل کیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له ترور څخه تروړزی، | له لېور څخه لېوړزی |
| له بن څخه بنزی | له ندرور څخه ندروړزی |
| له میرې څخه میریزی. | |

مګر د (غرزي) په کلمه کښې (زی) د تش نسبت د پاره راغلی دی.

**32**- (بخن) دا لاحقه درنګونو په آخر کښې د هغو د کموالي د ښودلو دپاره استعمالیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له سور څخه سوربخن | له سپین څخه سپین بخن |
| له تور څخه تور بخن | له شین څخه شین بخن |
| له زیړ څخه زیړ بخن | له خړ څخه خړ بخن |

**33**- (وبره، وشمه، وزمه) دا درې واړه لاحقې په یوه معنا دي او دالوانو او رنګونو د نومو په آخر کښې د تقلیل په غرض راوړل کیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له سور څخه سور وبره | له سور څخه سوروشمه |
| له زیړ څخه زیړ وبره | له زیړ څخه زیړوشمه |
| له شین څخه شین وبره | له سپین څخه سپین وزمه |

| | |
|---|---|
| له سپين څخه سپين وشمه | له تور څخه تور وزمه |
| | له شين څخه شين وزمه |

**34-** (مه، يمه) دا علامه د حيواني مونثاتو په آخر کښې راځي او د هغو د مخصوص صفت يعنی د نر طلبۍ او وار راوړلو نسبت ترې مراد يږي لکه:

| | |
|---|---|
| له غويي څخه غويمه | له خر څخه خريمه |
| له اوښ څخه اوښېمه | له مږ څخه مږيمه |
| له وز څخه وزېمه | له سپي څخه سپېمه |
| له اس څخه اسيمه | له پيش څخه پشېمه |

**35-** (ناك- نك) دا علامه د نومو په آخر کښې راځي او د هغو او موصوف تر منځ په څخه قدر زيات اتصال او پيوستوالي دلالت کوي لکه:

| | | |
|---|---|---|
| له غم څخه غمناك | له بوی څخه بويناك | له چل څخه چلناك |
| له خوند څخه خوندناك | له مزې څخه مزه ناك | له زيم څخه زيم ناك |
| له اثر څخه اثر ناك | له مينې څخه | له سکې څخه سکه ناك |

| | | |
|---|---|---|
| له ثلېښت ثخه ثلېښتناك | | میـ<br>نه<br>نا<br>ك |

**36-** (چی)[1] دا لاحقه هم د اسماو په آخر کښې راوړل کيږي او د يوې فعلي معنا نسبت ترې معلوميږي لکه:

| | |
|---|---|
| له ننداري ثخه نندارچي | له غوا ثخه غاوچي (پاده وان) |
| له مركي ثخه مركچي | له نغاري ثخه نغارچي |
| له ډنډوري ثخه ډنډورچي | له توپ ثخه توپ چي |
| له جار ثخه جارچي | له كوتې ثخه كوته چي |

**37-** (كښ) دا لاحقه كه ثه هم د (كښل) له مصدر ثخه يوه فعلي ماده ده لاكن د لاحقې شكل يې پيدا كړى دى او د نومو په آخر كښې د فعلي معنا د افاده كولو د پاره راثي لكه:

| | |
|---|---|
| له چلم ثخه چلم كښ | له جارو ثخه جارو كښ |

(1) **د (ناك) لاحقه د پ تو او فارسی او دچي لاحقه د پ تو او تركي تر من شريك دي.**

| له توري څخه تور کښ | له بار څخه بار کښ |
| --- | --- |
| له ګور څخه ګور کښ | له سر څخه سر کښ |
| له خواري څخه خواري کښ | له تير څخه تير کښ |

**38-** (خور) دا کلمه هم يوه فعلي ماده ده چې د لاحقې شکل يې موندلی دی او د اسماو په آخر کښې د فعلي معنا د ښکاره کولو د پاره استعماليږي لکه:

| له سړي څخه سړي خور | له ميراث څخه ميراث خور |
| --- | --- |
| له ډوډۍ څخه ډوډي خور | له غم څخه غمخور |
| له بډې څخه بډي خور | له چغلی څخه چغلخور |
| له سود څخه سود خور | له خيرات څخه خيرات خور |
| له زيات څخه زياتي خور | له حرام څخه حرام خور |

تبصره: په پښتو کښی د نسبتي صفاتو د پاره ځينی نورې لاحقې هم شته، لاکن ډېر مثالونه نه لري او دا دی په وروسته ډول ښودل کيږي :

**39-** (تی) د پښتو يوه قديمي لاحقه ده او د نسبتي صفت د جوړولو د پاره د نومو په آخر کښې راځې لکه: روژه، روژه تی، کوژه، کوژه تی، بوزه، بوزه تی، جرګه، جرګتی.

يوازې (ت، ته) هم د نسبت د پاره راځي لکه په پورته او اوچت کښې.

**40-** (تو) لکه: له نام څخه نامتو، له جرګې څخه جرګه تو، چمتو هم دغه ډول ښکاري.

**41-** (اوڼ) له غول څخه غولاوڼ، له پسکۍ څخه پسکاوڼ،
له تیز څخه تیزاوڼ.

**42-** (ټاری) له جنۍ څخه جنو ټاری، له خوشی څخه خوشاټاری.

**43-** (بانې) له شریك څخه شریك بانې، له ورا څخه ورا بانې.

**44-** (پاری) له لنډ څخه لنډ پاری.

**45-** (جی نجی) (له دیر څخه دیروجی، له خوار څخه خوارنجی).

**46-** (چن) (له ساړه څخه سړېچن، له وږی څخه وږېچن،
له سپین څخه سپین چن [1]

**47-** (غېجن) له مړ څخه مړغېچن.

**48-** (بوجن) لکه له خړ څخه خړبوجن (خیره مانند)

**49-** (مېچن) له غوړ څخه غوړمېچن = غوړمېڅن.

**50-** (ری) له لوټ څخه لوټیری، له جنګ څخه جنګیری

**51**. (ړی) لکه له اوم څخه اومړی (تار خام)، له خون څخه خونړی
له نوم څخه نومړی (موسوم)، له نیغ څخه نیغړی.

**52-** (سی) : له بانډې څخه بانډیسی، له ویر څخه ویروسی (نان مرده).

**53-** (څی) : له بنو څخه بنو څی.

**54-** (غلن) : له اوم څخه اومغلن، له تبی څخه تبغلن.

**55-** (غری) : له لیوني څخه لېونغری، له لنډ څخه لنډ غری.

**56-** (لی) : له وروسته څخه وروستلی، له و ړومبی څخه ړومبلی.

**57-** (می) : له منځ څخه منځمی.

---

(1) **(چن) په رن ونو ک ی د رن د کموالي د ودلو د پاره را ي.**

**58-** (نك) : له ښځې څخه ښځونك ، له ژړا څخه ژړانك

**59-** (ينك) : له چاود څخه چاودينك، له لوېشت څخه لوېشتينك.

**60-** (وښه) : له مېړه څخه مېړوښه

**61-** (وس) : له چړ څخه چړوس، له ډب څخه ډبوس.

**62-** (وى) : منځ څخه منځوى، له مړ څخه مړاوى (پژمرده).

**63-** (يانى) : له زمرى څخه زمريانى، له خوګ څخه خوګيانى

**64-** (يانى) : له زمرى څخه زمريانى، له ستوري څخه ستوريانى

**65-** (يار، يارى) : له بخت څخه بختيار، له پوهنې څخه پوهنيار،

له مال څخه ماليار (باغوان)، له بټ څخه بټ يارى.

**66**. (ينه) : لکه له نر څخه نرينه، له ښځې څخه ښځينه،

له پس څخه پسينه.

**67**. (وار) : له اميند څخه اميندواره ښځه.

**68**. (ګنى ګنۍ) : لکه له خوسر څخه خوسرګنۍ، له پلار څخه پلارګنۍ

له منى څخه منګنى.

**69-** (ار) : لکه له ټت څخه ټتار.

**70-** (ا) "له راج" څخه راجا، له کوڼ څخه کوڼا، له ړوند څخه ړوندا (دا صفتي نومونه دي)

## د فعلي صفاتو لاحقې

فعلي صفات هغه دي چې له مصدر څخه جوړيږي او فاعلي يا مفعولي معنا لري. دا صفات د معنوي خصوصيت په لحاظ په دوه رازه دي: يو هغه دي چې په کومې خاصې زمانې پورې تعلق نلري او په

دایمي ډول پر خپله معنا دلالت کوي لکه (خوځند، ګرځند) او بل قسم هغه دي چې په یوې زمانې پورې اختصاص ولري لکه (تلونکی، تللی) چې اول په حال او مستقبل او دوهم په ماضي کښې خپله معنا څرګندوي. اول قسم فعلي صفات په پښتو کښې نسبتاً لږ دي او له ټولو مصادرو څخه په قانوني او عمومي ډول نه جوړیږي، مګر دوهم قسم فعلي صفات ډېر او له ټولو مصادرو څخه په عمومي او قانوني صورت لاس ته راځي. دا دواړه قسمونه ځانله ځانله لاحقې او علامې لري چې دا دی وروسته بیانیږي:

## اول قسم فعلي صفتونه :

**1-** (ند) دا پسینه توری غالباً دیدل والا مصادر و د فعلي مادې په آخر کښې د مصدري علامې پر ځای راځي او پر فاعلي معنا باندې دلالت کوي لکه:

| | |
|---|---|
| له ګر ځېدل څخه ګر ځند | له ژړېدل څخه ژړند |
| له خوځېدل څخه خوځند | له بریښېدل څخه بریښند |
| له سوځېدل څخه سوځند | له ړچېدل له ړچند |
| له ترېدل څخه ترند | له ځلېدل څخه ځلند |
| له رغړېدل څخه رغړند | له رژېدل څخه رژند |
| له ګړېېدل څخه ګړېند | له ویل څخه ویند |
| له کړپېدل څخه کړ پند | له ځوړېدل څخه ځوړند |

**2-** (ندی) دا لاحقه د (ند) پشان دیدل والامصادر و د فعلي مادې په آخر کښې د (یدل) پرعوض راوړل کیږي او فاعلي صفت ترې جوړیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له بژېدل څخه بژندی | له خوځېدل څخه خوځندی |
| له برېدل څخه برندی | له شرپېدل څخه شرپندی |
| له رپېدل څخه رپندی | له ورېدل څخه ورندی |
| له چورلېدل څخه چور لندی | له ویل څخه ویندی |
| له کرپېدل څخه کرپندی [1] | د ژول ( ژوند کول ) ژوندی |

**3-** (نده) : دا لاحقه هم د فعلي مادې په آخر کښې د مصدري علامو پرځای د فعلي صفت د جوړولو د پاره راوړل کیږي لکه:

له پوول څخه پوونده، له ځرېدل څخه ځرنده، له چلېدل څخه چلنده خره، له بهېدل څخه بهنده اوبه.

---

**4-** (اند) : د فعلي مادې په آخر کښې د فعلي صفت د جوړولو د پاره راځي لکه :

له پوهېدل څخه پوهاند ، له ځلیدل څخه ځلاند ،

له ژړېدل څخه ژړاند ، له بهېدل څخه بهاندې اوبه.

**5-** (ندو) : دا لاحقه هم د دغه وړاندې مطلب د پاره استعمالیږي مګر څه قدر مبالغه هم پکښې شته لکه :

له ژړل څخه ژړندو ، له وېرېدل څخه وېرندو ،

---

(1) **دا پنـ ـه کلمـ ـ له صفتي معنا سره ـه قدر اسمي اختصاص هم لري.**

له قارېدل څخه قارندو.

د دې مثالو پـه آخـر کښې کلـه (کـی) هـم زياتېـږي لکـه : ژړنـدوکی، ويرندوکی، قارندوکی.

**6-** (ندوی) : دا لاحقه هم د فعلي مـادې پـه آخر کښـې د مصدري علامـې پر ځای راځي او فعلي‌صفت ترې جوړيږي لکه:

| | |
|---|---|
| له ساتل څخه ساتندوی | له څرګندېدل څخه څرګندوی (د تکرار له کبله يو ند حذف شوی دی) |
| له ګټل څخه ګټندوی | له ښکارېدل څخه ښکارندوی |
| له پېژندل څخه پېژندوی | له ګواښېدل څخه ګواښندوی (تهديد کننده) |
| له وټل [1] وټندوی | |

تبـصره: سـتايوال ( مـداح) د "وال" پـه لګولـو او لګيـا ، ګليـا د (يـا) پـه واسطه لـه فعلي مادو څخه جوړ شـوي دي، مګـر نـور مثالونـه پکښـې نـه دي لېدل شوي.

دوهم قسم فعلي صفات :

7- (ونکی) دا لاحقه پـه ټولـو مـصادرو کښـې د مـصدر د (ل) پـه عـوض د فعلـي صـفت د جوړولـو د پـاره راوړل کيـږي، مګـر پـه لازمـي او متعـدي

---

(1) **دا مصدر په خپله مستعمل نه دی، مـ ر فعلي ماده په " ـه، و ه" ک . مـستعمله ده او له همدې مادې خه و ندوی جوؤ شوی دی چ د مقتصد معنا ورکوي. متل دی د بهر له ندوی نه د کور و ندوی ه دی.**

معلومو مصدرونو کښې فاعلي معنا او په مجهولو مصدرونو کښې مفعولي معنا ورکوي او معنا يې په حال او مستقبل پورې تعلق لري لکه:

| | |
|---|---|
| له تلل څخه تلونکی | له پاڅول څخه پاڅوونکی |
| له ختل څخه ختونکی | له ماتول څخه ماتوونکی |
| له وتل څخه وتونکی | له ګرځېدل څخه ګرځېدونکی |
| له وهل څخه وهونکی | له ډېبدل څخه ډېبدونکی |
| له ساتل څخه ساتونکی | له پخېدل څخه پخېدونکی |

**8-** (ونی) دا لاحقه هم د (ونکی) په شان د مصدري لام پر ځای راځي او فعلي صفات ترې جوړېږي او نور خصوصيات يې هم کټ مټ د (ونکی) غوندې دی. لکه:

| | |
|---|---|
| له تلل څخه تلونی | له پاڅول څخه پاڅوونی |
| له ختل څخه ختونی | له ماتول څخه ماتوونی |
| له وتل څخه وتونی | له ګرځېدل څخه ګرځېدونی |
| له وهل څخه وهونی | له ډېبدل څخه ډېبدونی |
| له ساتل څخه ساتونی | له پخېدل څخه پخېدونی |

**9-** (ی ملینه) دا پسینه توری د لام والااو ځينې ول والااوېدل والا مصادر و په آخر کښې د فعلي صفت د جوړولو د پاره راوړل کيږي، مګر په لازمي مصدرونو کښې فاعلي معنا او په متعدي مصدرونو کښې مفعولي معنا افاده کوي او معنا يې په ماضي پورې تعلق لري لکه:

| | |
|---|---|
| له تلل څخه تللی | له وهل څخه وهلی |

| | |
|---|---|
| له ختل څخه ختلی | له ساتل څخه ساتلی |
| له وتل څخه وتلی | له پاڅول څخه پاڅولی |
| له پاڅېدل څخه پاڅیدلی | له غورځول څخه غورځولی |
| له درېدل څخه درېدلی | له ډېېدل څخه ډېېدلی |

تبصره: الف :- له ځینو خصوصي مصدرو لکه (ژړل - خندل) څخه د غه دوهم قسم فعلي صفات نه جوړیږي، بلکې لـه مرادفو مصدرو یعنی (ژړېدل او خندېدل) څخه سازېږي لکه : ژړیدونکی – خندیدونکې.

ب :- لـه (راتلـل، درتلـل، ورتلـل) څخـه چې پـه (ی) بانـدې فعلي صفت جوړیږي، نو (ت) یې په (غ) باندې اوړي لکه : راغلی– درغلی– ورغلی.

ج :- کله د (**9**) مادې په صفاتو کښې د مصدر (ل) غورځیـږی او پـر ځـای یې (ی) راوړل کیږي لکه:

له الوتل څخه الوتی، له پرېوتل څخه پرېوتی، له ننېتل څخه ننېتی

د :- اچوونی چې یو مفعولي صفت دی غالباً په اصل کښې اچولی دی او وروسته یې (ل) په (ن) بدل شوی دی.

ه :- (استازی) هم یو مفعولي صفت او د استولی په معنا دی. مګر د فعلي مادې په آخر کښې د (زی) په لګولو جوړ شوی دی.

و :- کله په (ونکې، ونی) سره جوړ فعلي صفات پـه معلومـو مـصدرونو کښـې هـم پـه مفعـولي معنـا راځـي، مګـر دا بـه هغـه ځـای کښـې چـې موصوف ته یې د فاعلي معنا نسبت نشي کیدی لکه: وړونکي مالونـه، خوړونکي شیان، اچوونی بچي.

## د مجردو وصفونو لاحقې

مجردو صفونه هم لکه د صفاتو غونډې له اسم او صفت څخه د لاحقو په نښلولو جوړیږي او د یو نوم یا یو صفت معنوي یا ظاهري حالت او وصف ښکاره کوي. مثلاً (هوښیار) یو ذاتي صفت او (هوښیار توب) د دغه ذات او شخص وصفي حالت یا حاصل صفت دی. مجرد وصفونو ته په عربي اصطلاح (صفات محضه) هم ویل کیدی شي.

په پښتو کښې زیات مجردو صفونه له ذاتي صفاتو څخه جوړیږي چې په وروسته ډول یې بیانول غواړو.

**1-** (توب) دا لاحقه د نومو او صفاتو په آخر کښې د مجرد وصف د جوړولو او بیانولو د پاره راوړل کیږي. د دې لاحقې خصوصیت دا دی چې غالباً د اشخاصو او بنیادمانو اوصاف بیانوي ښه وي او که بد، یعنی هغه وصف چې د (توب) په واسطه سازیږي هغه به اکثراً په بنیادمانو پورې مربوط وي لکه:

| له نومونو څخه: | له صفاتو څخه: |
|---|---|
| له سړي څخه سړیتوب | له لیونی څخه لیونتوب |
| له خر څخه خر توب | له نارینه څخه نارینتوب |
| له غویي څخه غویي توب | له ساده څخه ساده توب |
| له سپي څخه سپي توب | له دوبي څخه دوبي توب |
| له هلك څخه هلك توب | له پیغلې څخه پیغلتوب |
| | له مرور څخه مرور توب |

**2-** (تیـا) دا علامـه د (تـوب) سره پـه معنـوی خصوصیت کښـې نـزدې ده مګر په لفظي لحاظ ورسره دومره فـرق لـري چې (تـوب) عـام دی او د هر ډول کلمـو سـره راځـي او (تیـا) غالبـاً د صـحیح الاخـر صـفاتو سـره راوړل کیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له مشر څخه مشر تیا | له هوښیار څخه هوښیار تیا |
| له کشر څخه کشرتیا | له زړور څخه زړورتیا |
| له لوړ څخه لوړتیا | له پښېمان څخه پښېمانتیا |
| له روغ څخه روغتیا | له مرور څخه مرورتیا |

**3-** (والی) : دا نښـکه د عامو صفاتو په آخر کښې د وصفي معنا د بیانولو او مجرد وصف د جوړولو د پاره راځي مګر په ظاهري او صافو کښې زیات استعمالیږي لکه:

| | |
|---|---|
| له موړ څخه موړوالی | له کلك څخه کلکوالی |
| له پلن څخه پلن والی | له زیږ څخه زیږوالی |
| له اوږد څه اوږدوالی | له چیت څخه چیتوالی |
| له تور څخه تور والی | له جګ څخه جګوالی |
| له سور څخه سور والی | له غټ څخه غټوالی |

دغه شان د نومو په آخر کښې هم راځي لکه:

له کور څخه کوروالی (خانه داری) له هلك څخه هلکوالی او نور.

**4-** (ولي) : دا لاحقه د خپلوانو د نومو او د ځینو صفاتو سره اسـتعمالیږي لکه

له ورور څخه ورورولي
له پلار څخه پلارولي
له مور څخه مورولي
له عزيز څخه عزيزولي
له تربور څخه تربورولي

له خپل څخه خپلولي
له پښتون څخه پښتون ولي
له رشتين څخه رشتين ولي
له سپين څخه سپين ولي

**5-** (واله)[1] دا علامه د اقوامو او ملتونو د نومو په آخر کښې د قومي او صافو د بيان د پاره استعمال شوې ده لکه:

له پښتون څخه پښتونواله
له مغول څخه مغول واله
له مومند څخه مومند واله

له اولس څخه اولس واله
له ځائی څخه ځائي واله
له ترکانړی څخه ترکانړي واله

**6-** (ګلي ګلوي) دا لاحقه هم د خپلوانو د نومو او ځينی صفاتو په آخر کښې راځي لکه:

له ورور څخه ورور ګلوي = ګلي
له عزيز څخه عزيز ګلي= ګلوي
له تربور څخه تربور ګلي= ګلوي
له خور څخه خور ګلوي

له پلار څخه پلار ګلوي
له مور څخه مور ګلوي
له هوسا څخه هوسا ګلوي
له پيوونده څخه پيوندګلوي = ګلي
له پيژندوی څخه پيژندګلوي= ګلي
(پيژندګلو هم ويل کيږي)

---

(1) **داسی بريـ نی چـ (والی، ولي، واله) د (ول) خـه چـ پـه پـ تـو کـ . د بـودن پـه معنا يو غير مستعمل مصدر دی ماخوذ دی، ول چـ هم معنا او هم لفظاً سره تناسب او نزد والی لري.**

**7-** (ینه) : دا لاحقه د صفاتو او نومو په آخر کښې د وصفي معنا د ښودلو د پاره راغلې ده لکه:

له مړ څخه مړینه
له هوسا څخه هوساینه
له دلاسا څخه دلاساینه
له لوی څخه لوینه

له وړوکې څخه وړکینه
له هلك څخه هلکینه
له پېرزو څخه پېرزوینه
(په دې مثال کښې زیات وضاحت دی).

**8-** (وی) دا لاحقه د یو څو صفاتو په پای کښې د وصفی معنا د ښودلو د پاره راغلې ده لکه:

له بد څخه بداوی، له سپك څخه سپکاوی، له درون څخه درناوی،
له لوړ څخه لوړاوی، له ورك څخه ورکاوی.

**9-** (جلي "ه") (څرګنده ه) دا پسینه توری هم د ځینو صفاتو په آخر کښې راځي او مجرد وصف ترې جوړیږي لکه:

له پوه څخه پوهه، له ناست څخه ناسته، له ولاړ څخه ولاړه
له پړ څخه پړه، له وړ څخه وړه.

**10-** (معروفه ي) دا توری د ذاتي صفاتو په آخر کښې زیاتیږي او وصفي معنا ښکاره کوي لکه:

له ځوان څخه ځواني
له غلیم څخه غلیمي
له ترکاڼ څخه ترکاني
له ټګ څخه ټګي

له توند څخه توندي
له درغل څخه درغلي
له اندیوال څخه اندیوالي
له ګاډیوان څخه ګادیواني

له سیال څخه سیالي
له لوی څخه لويي
له ګران څخه ګراني

له هوښيار څخه هوښياري
له غوبون څخه غوبني
له اوښبون څخه اوښبني
له ګډبون [1] څخه ګډبني

**11-** (ملینه ی) دا توری هم د یو څو هجائي صفاتو په آخر کښې د مجرد وصف د جوړولو د پاره استعمال شوی دی لکه :

له زيات څخه زياتی
له کم څخه کمی
له تېر څخه تېری

له لر څخه لری
له بر څخه بری
له سم څخه سمی

تبصره:

په پښتو کښې د مجردو وصفونو د جوړونې د پاره ځينی نورې لاحقې او پسينې هم شته مګر مثالونه يې لږ او کم دي چې دا دی په لاندې ډول ښودل کيږي :

**12-** (انه) لکه : له مېړه څخه مېړانه، له پړ څخه پړانه، له وړ څخه وړانه، له يار څخه يارانه.

**13-** (نه) له لور څخه لورنه ، له وير څخه ويرنه (مرثيه)

**14-** (تون) له بېل څخه بېلتون، له کونډې څخه کونتون

**15-** (ګيرنه) له ياد څخه ياد ګيرنه، له ډاډ څخه ډاډ ګيرنه.

---

(1) **دا درې واؤه صفتونه تخفيفاً د (غوبه، او به، أ به) په شکل استعماليإي م ر مجرد وصفونه يـ غالباً لـه اصلي صـورتونو خـه جـو ؤ شـوي دي او واو پک ـ غور يدل دی.**

16- (سه) له تنګ څخه تنګسه.

17- (ګنی) له تربور څخه تربګني.

18- (لی) له سپور څخه سپرلی، له سور څخه سورلی.

19- (تانه) لـه سـپي څخـه سـپيتانه (ښـايي چې پـه اصـلي کښـې سـپيتون وي).

20- (وښ) له سړی څخه سړی وښ.

21. (وخه) له تود څخه تودوخه = تودوخی.

22- (يز) له بند څخه بنديز، له لنډ څخه لنډيز.

23- (وښت) له پيدا څخه پيداوښت = پيدايښت.

24- (ون) له ژوندي څخه ژوندون.

25- (ا) له تور څخه تورا (تهمت).

************

# د افعالو اشتقاق

ټول افعـال پـه پښتـو کښـې لـه مـصادرو څخه اشـتقاقیږي، د افعـالو اشتقاق د پاره ځینی لاحقې او سابقې هم شته مګـر دومـره ډېرې نـه دي. دلته مونږ په لنډ ډول د افعالو د اشتقاق طریقه بیانول غواړو.

هغه افعال چې په پښتو کښې لـه مصدر څخه جوړیـږي پـر دوو ګروپـو یعنی دوو برخو وېشل کیږي.

یو د حالیه افعالو ګروپ او بل د ماضیه افعـالو ګـروپ دی. د لام والا مصادرو د ماضیه افعالو په اشتقاق کښې د مـصدر اصـلي مـاده چنـدان تغیـر نـه کـوي او تقریباً ټـول ماضـیه افعـال پـه یـو مـنظم او قـانوني ډول جوړیږي؛ چې پـه دې اعتبـار د پښتـو ټـول مـصدرونه قـانوني او تغیـر نـا پذیر بللای شو.[1]

مګر په حالیه افعالو کښې د ځینو مصادرو اصلي ماده تغیر مـومي، چې ځینی تغیرونه قانوني و ځینی بې قانونه دي مګر دا قسم مـصدرونه هم ډېر کم او لږ دي.

د ول والا او یدل والا مصدرونو ځینی افعال مرکب دي چې د (کـړل او شول) د افعالو په امداد سره جوړیـږي او هغـه بـه پـه مرکبـو افعـالو کښـې وښودل شي. او ځینی افعال یې بسیط دي چې پـه خپلـه لـه مـصدر څخـه

---

(1) یوازې د (تلل، راتلل، ورتلل) مصدرونو په ماضی انو ک تغیر پ اِي.

لاس ته راځي. دا قسم مصدرونه هم ټول قانوني دي او درست ماضيه او حاليه افعال تري د يوې قاعدې سره سم جوړيږي صرف د يدل والا مصادرو په حاليه افعالو کښې څه قدر تغير راځي، او "د" يې په "ږ" بدليږي. په پښتو کښې په عمومي ډول له هر مصدر څخه لومړی درې اساسي صورتونه اشتقاق کيږي چې يو استمراري حال [1] بل استمراري ماضي او بل فعلي صفت دی.

بيا نورې صيغې او افعال له دغو درې صورتو څخه راوځي. په دې ډول چې مطلقه ماضی له استمراري ماضی څخه او نورې ماضي ګانې له فعلي صفت څخه اوامر، مستقبل له حال څخه جوړيږي.

اوس د يو څومصدرونو دغه درې اساسي صورتونه وګورئ:

| | | استمراري حال | استمراري ماضی | فعلي صفت |
|---|---|---|---|---|
| 1 | له ساتل څخه چې يو تغير ناکوونکې مصدر دی | ساتم | ساته | ساتلی |
| 2 | له الوتل څخه قانوني تغير کوونکی مصدر دی | الوزم | الوته | الوتلی |
| 3 | له ليدل څخه چې يو بې قانونه تغير کوونکې مصدر دی | وينم | ليده | ليدلی |
| 4 | له چلول څخه چې يو قانوني مصدر دی | چلوم | چلاوه | چلولی |

(1) **استمراری حال ته جاري يا اخباري حال هم ويل کيدای شي.**

| 5 | له چليدل څخه چې يو قانوني تغير کړونی مصدر دی | چليږم | چلېده | چلېدلی |
|---|---|---|---|---|

## د افعالو د اشتقاق پسينه او سرينه

له دغو پورته درې صورتو څخه چې نور افعال جوړيږي نو ضرور ځينی سرينه او پسينه علامې غواړي او دا دي په وروسته ډول بيانيږي:

**سرينه:**

**1-** (و) : دا يو سرينه توری دی چې د اطلاق او تجريد په معنا د استمراري حال، استمراري امر او ماضي په سر کښې راوړل کيږي او مطلق حال، مطلق امر او مطلقه ماضي ترې جوړيږي لکه:

مطلق حال: وساتم – والوزم – ووينم – وچلوم – وچلېږم.

مطلق امر: وساته-[1] والوزه –ووينه – وچلوه – وچلېږه

مطلقه ماضي: وساته، والوته – وليده – وچلاوه – وچلېده دا (و) مطلقې د تمنايي ماضي په اول کښې هم راځي لکه: زړه مې غواړي چې والوتلی.

**2-** (وبه) دا سابقه د مطلق مستقبل د جوړولو د پاره د حال له فعل څخه مخکښې راوړل کيږي لکه: وبه ساتم، وا به لوزم، و به وينم، و به چلوم ، و به چليږم[2]

---

[1] مطلق امر له مستمر امر خه جوؤيإي لكه (ساته) او مستمر امر د حال له فعلي مادې خه د خطابي(ه) په ا ولو تيارياإي.

[2] (به) په جمله كـ ـ له واو نه وؤاندی كياإي او د جمل د اول او مهم جز سره پيوستياإي. لكه زه به سباله احمدووينم.

**3-** (دې) داعلامه د غايب او متكلم امر د پاره د فعل حال د مخه راځي لكه: ودې ساتي – ودېويني – ودې ساتم – ودې وينم [3].

**پسينه:**

**4-** (به) : دا توری تقريباً د استمرار او تاكيد علامه ده، او د استمراري ماضي په آخر كښې د زيات استمرار د پاره راځي لكه: الوته به – چلېده به – دغسې د فعل حال په آخر كښې د استمراري مستقبل او تاكيد معنا هم وركوي لكه: الوزم به – چلېيږم به، پرته له دې ځخه په نورو ځايو كښې هم استعماليږي.

**5-** (وای =وی) : يوه تمنايي لاحقه ده چې د فعلي صفت په آخر كښې د تمنايي ماضي د پاره راوړل كېږي لكه (كه سليم مې ليدلی وای، كه توريالی راغلی وای)

**6-** (يم، يو – يې ، يئ، دی ، ده، دي) دا كلمې په اصل كښې امدادي افعال دي خو د فعلي صفت په آخر كښې د قريبې ماضي د جوړولو د پاره راځي.

په دې كلمو كښې ضميري رنګ هم شته ځكه چې په ترتيب د متكلم، مخاطب، غايب مفرد او جمعې د پاره استعماليږي. سر بېره پر دغه د قرب علامې هم دي نو په دې لحاظ ضميري يا فعلي لاحقې هم ورته ويلای شو. مثالونه يې دا دي: ساتلی يم – ساتلی يو – ساتلی يې – ساتلی يئ – ساتلی دی – ساتلې ده – ساتلي دي – ساتلې دي.

---

[3] **(دې) هم د ( به) خصوص ت لري او په جمله ک . سرته ي لكه: سليم دې كريم ويني.**

**7-** (وم، وو – وې، ويـﺉ- و، وه – وو، وې) دا کلمـې هـم پـه اصـل کښـې امدادي افعال دي چې د بعيدې ماضـي د جوړولـو د پـاره د فعلـي صـفت په پای کښې راوړل کيږي. سر بيره پر دغه، ضميري رنګ هم لري او پـه ترتيب د متکلم، مخاطب، غايب مفرد او جمع د پـاره اسـتعماليږی چې پـه دغـه وجـه يې ضـميري او فعلـي لاحقې هم بولـو. مثالونـه يې دا دي.

ساتلی وم – ساتلی وو – ساتلې وې – ساتلی وئ – ساتلی وء- ساتلي وو – ساتلې وه – ساتلې وې.

**8-** (يي) دا دغايب د پاره يوه فعلي او ضميري لاحقه ده او د فعلـي صـفت په آخر کښې د شك، احتمال او شرط په وخت کښې راځي لکه:

ښايي حميد زما کتاب ساتلی يي.

**9-** (وي) دا کلمه په اصل کښې د حال جاري امدادي فعل دی مګر کله د (يی) پـشان د فعلـي صـفت پـه آخر کې د شـك او شـرط پـه وخت کښـې استعماليږي لکه: ( ښايي د بورې ماشين چلېدلی وي، که چلېـدلی وي ښه به وي).

**10-** (به يي، به وي) دا دواړه کلمې که د فعلي صفت په آخر کښـې راشـي نـو پـه نـزدې زمانـه کښـې شك او احتمـال ښيـي لکـه ( الـوتلی بـه يـي – چلېدلی به وي) [1]

<u>يادګيرنه:</u>

الف :- د (**تلل**، راتلل، ورتلل، درتلل) ماضی مطلقه له استمراري ماضي او دغسې مطلق حال يې له استمراري حال څخه نه جوړيږي بلکې خلاف القياس (ولاړ، راغی، ورغی، درغی، ولاړ شي، راشي) راځي.

---

(1) **م ر په جمله ک (به) له فعل نه مخک را ي لکه: ماشين به چليدلی وی.**

ب :- په ځینی دوه اجزایي مصدرونو کښې مطلقې صیغې له استمراري صیغو څخه د واو په زیاتوالي نه جوړ یږي بلکې د لهجې په تغیر لاس ته راځي په دې ډول چې په مطلقو صیغو کښې په اوله هجا باندې خج (اکسنت) راځي لکه: که حمید کار پریښود زه به یې هم پرېږدم.

ج :- د ځینو مطلقو ماضی ګانو په منځ کښې کله واو هم زیاتیږي لکه وکوت، وخوت مګر دا زیاتوالی اساسي تغیر نه دی او له مفرد غایب څخه پرته په نورو صیغو کښې نه راځي.

## دوهمه برخه ترکیبونه

لکه چې د کلماتو د تشکیل تر عنوان لاندې مو ویلي دي، په الماني ژبه کښې د پرېفکسونو په واسطه د کلماتو جوړښت په اشتقاق کښې داخلیږي او په فرانسوی کښې د ترکیب یو قسم باله شي.
په هر صوت دا فرق شاید د دغو ژبو د ځینو خصوصیاتو له مخه وي.
لاکن په پښتو کښې لکه چې ګورو پریفکسونه (سابقې) اول خو بیخی لږ دي، او که څه موجود دي نو هغه هم زیات په اصل کښې اسما او صفات دي چې د سرینه علامو شکل یې موندلی دی. هر څه چې سفکسونه (لاحقې) دي نو هغه اکثر بلکې ټول ادوات او حروف دي، لـه دې کبله پـه پښتو کښې د لاحقو په واسطه د کلماتو تشکیل پـه اشتقاق کښـې داخل وبالـه شـو، او د سـابقو پـه واسطه د کلمـاتو جوړونـه د ترکیـب یـو قـسم بولو، ځکه چې زیاتې سابقې په پښتو کښې د جلا او مستقلو کلمو رنګ لري او که ځینې پکښې حروف دي هغه هم لـه بلې کلمې نـه جلا لیکل کیږي، بنا پـر دې پـه پښتـو کښـې د کلمـاتو ترکیـب پـر دوه ډولـه دی: یـو هغه دی چې لـه سابقې او یـوې بلې کلمې څخه جوړیږي او بـل هغـه دی چې د دوو مستقلو کلمو له یو ځای کولو څخه لاس ته راځي.

## د سرينه علامو په واسطه د کلمو جوړونه

په دې قسم ترکیب کښې دوهم جزء اصل او اره او اول جزء متمم بلل کيږي ځکه چې د کلمې ټوله معنا د دې جزء په واسطه پوره کيږي.

د سابقو په واسطه په پښتو کښې صفات او نومونه جوړيږي چې بيان يې په وروسته ډول دی:

الف :- حرفي پريفکسونه :

**1-** (بې) : دا په پښتو کښې د نفي علامه ده چې د نومو په سر کښې د منفي صفت د جوړولو د پاره راوړل کيږي لکه:

| | |
|---|---|
| له فکر څخه بې فکره [1] | له خولې څخه بې خولې |
| له خيال څخه بې خياله | له لار څخه بې لارې |
| له ډول څخه بې ډوله | له ژبې څخه بې ژبې |
| له سر څخه بې سره | له جوړې څخه بې جوړې (بې مثال) |
| له خوند څخه بې خونده | له کډې څخه بې کډې |
| له کور څخه بې کوره | له وټې څخه بې وټه (بې نقص) |
| له زړه څخه بې زړه | ښايي چې په بلمنګی هم په اصل کښې بې مالګې وي |

**2-** (نا) : دا هم د نفي سرينه توری دی د مجردو نومو او صفاتو په اول کښې د منفي صفت جوړولو د پاره راځي او په فعلي صفاتو کښې زيات استعماليږي. لکه:

| | |
|---|---|
| له فکر څخه نا فکره [2] | له بللی څخه نا بللی |

---

**(1) ب ، يو تغير ورکوونکی حرف دی. د صحيحو کلمو په آخر ک . (ه) زياتوی او د مونثو کلمو (ه) په (ې) بدلوي لکه دغه پورته مثالونه**

له جوړ څخه نا جوړه
له کار څخه نا کاره
له پوه څخه نا پوه
له بلد څخه نا بلده
له چل څخه نا چله
له خوښ څخه نا خوښه

له ساتلی څخه نا ساتلی
له کتلی څخه نا کتلی
له لیدونکی څخه نا لیدونکی
له شوني څخه ناشونی
له رغیدونی څخه نا رغېدونی
له وللی څخه ناولی
(په اصل کښې ناوللی دی)

**3-** (نه) دا هم د نفي سابقه ده، مګر زیات استعمال یې په افعالو کښې دی او د دې په واسطه منفي افعال جوړیږي لکه :

نه ځي– نه کښېني– نه پاڅم– نه پاڅیده– نه دی راغلی– نه و راغلی – و نه لید[1] او داسې نور، دا سابقه په فعلي صفاتو کښې هم استعمالیږي لکه:

نه سترې کیدونکی، نه جوړیدونکی – نه رغېدونکی.

**4-** (مه) [2] دا سابقه د منفی امر د جوړلو د پاره د مثبت امر د مخه راوړل کیږي لکه: مه ځه – مه کښېنه – مه پاڅه – مه وهه – مه ګوره – مه چلوه – مه ویریږه:

---

(2) **(نا) هم تغیر ورکوونکی حرف دی.**

[1] **دا علامه کله د فعل نه وروسته او کله د دوه اجزاي افعالو په منځ کې هم راځي لکه: حمید ځي نه، نه پري إدم – پرې نکؤی او نور.**

<u>يادونه</u>: لـه دغـه وړانـدې منفي صـفاتو څخـه مجـردو صـفونه د نـورو مجردو او صافو پشان د لاحقو په واسطه جوړيږي لكه:

بـې فكـري – نـا جوړتيـا – نـا بلـدي – نـا خـوښي – بـې خـولې تـوب – بې زړه توب

**5-** (هم) دا سابقه په پښتو كښې ډېر مثالونه نه لري خالي په دې وروسـته كلمـو كښـې د صـفت د جوړولـو د پـاره راغلـې ده او د معيـت او ورسـره والي معنا وركوي لكه:

همځنګك، هم خيال، هم غاړى، هم عمر، هم ځولى ، همغاړه.

**6-** (پر) يو څو مثالونه پكښې موجود دي لكه: پر كټې ، پرديس ، پر ناله

<u>صفتي پريفكسونه</u> :

**7-** (كـم) دا سـابقه د نومـو پـه سـركښې د صـفت د جوړلـو د پـاره استعماليږي لكه: كم عقل- كمزور – كم فكر – كم طاقت – كم همت.

**8-** (بد ) د دې سابقې په واسطه په پښتو كښې ډېر صفات جوړ شوي دي لكه:

بدخرڅى= بدخرڅ (مسرف)– بدشكل– بدنام– بدمخى– بدسرى– بد چلندى– بدپورى– بدرګك– بدستر ګى– بدلمن– بدمرغى– بدژبې– بد لارى– بدځناور– بد لېوه– بدسولى (چې په هوش برابر نه وى) بدخولى– بدژوندى – [1].

---

[2] دغه د نفى سابق غالباً په اكثرو اريايي ژبو ك . سره شريك دى. په سنكريت ك (نس،نه) د نفى تورى دى، چ د پ تو (نه، نا) ورسره يووالى او نزديوالى لرى.

(1) په مركبو صفاتو ك (ى) هم د لاحق په أول زياتيإي او كله ب (ى) هم را ي.

**9-** (یو) د دې سابقې په واسطه ځینی صفات او قیود جوړ شوي دي لکه: یوسترګی- یولاسی- یووزری- یوستوی (یك لا)- یوازې- یونیم- یوشان- یورنګ- یوډول- یوخېل- یوراز- یوځو.

**10-** (نیم)[2] د دې سابقې په ذریعه هم ځیني صفات او نومونه جوړ شوي دي لکه:

نیم ژوبله – نیم زالی – نیمه خوا – نیم ګړی – نیمکله – نیمچه – نیمکوره – نیم برخی – نیم کښه دروازه ( نیم باز) نیمکۍ.

## اسمي پریفکسونه :

**11-** (خوا) د دې سرینې په واسطه ځیني صفات جوړ شوي دي لکه: خوابدی – خواشینی، خواخوږي.

**12-** (شا) دا سابقه د صفاتو او نومو د مخه راځي او صفات او اسماترې جوړیږي.

**صفات** : شاکړوپی- شاټیټی- شاټوغی- شا کوپ- شاخوږی

نومونه : شاټینګه (سنګدان) شاډوله (یوه لوبه ده) شاخیل- شامتوله (یوه مرغۍ ده) شاغوت (په اصل شاګوته دی).

**13-** (شا ، ښا) دا دواړه سابقې اکثر د نومو د جوړونې د پاره راځي او د ښه او لوی معنا ورکوی لکه: شاتوت- شاتیر- شاکاسه- شائلمی- شارګ- ښاپېری- ښامار- ښاپېرك

---

(2) **د (هم، کم، بد، نیم) سابقې د پښتو او پارسی تر منځ شریکې دي. او د ځینو مثالونه هم له پارسی سره شریك راغلي دي لکه: کم همت – کم عقل**

**14-** (سر) دا کلمه هم د سابقې په صورت استعمالیږي او ځینی صفات او نومونه پرې جوړیږي لکه: سرتور- سرکوزی- سرزوری- سرکښ- سر هوا- سرګوم (بې هوش)، سرتېری (سر باز)- سرخیل- سرلښکر.

نومونه دا دي سروری- سر بانډی- سرکلی- سرکونډی- سر پښتې- سرتړونی- سرپوښ- سر پیچك- سرورخ - سرګړی (د غره یو خوشبوی واښه دي).

**15-** (خر) دا کلمه هم د سابقې په صورت د ځینو نومو په اول کښې راغلې ده لکه: خرمنډی (یو بوټی دی) - خروله - (مجنون بید)- خرغوږ- خرډګ (یو بوټی دی چې پاڼه یې پر زخم باندې ږدي).

## د مصدر او فعل جوړولو سابقې

په پښتو کښې ځینی نورې سابقې شته چې اکثر د مصدرونو په اول کښې راځي. دا سابقې ځیني حرفي ځیني ضمیري او ځیني داسې ادوات دي چې کومه خاصه معنا یې هم نه معلومیږي، دغه شان دوهم جزیې هم مختلف صورتونه لري چې ځینی مستعمل معنا دار لفظونه دي او ځیني بې معنا کلمې ښکاري په دې قسم ترکیبونو کښې ځیني اجزاء په خپله اصلي معنا هم دلالت کوي او ځینی یې نه کوي بلکې یو بل مفهوم لري چې هغه یې له اجزاء وڅخه نه معلومیږي لکه (پرې وتل) چې د لویدلو معنا ورکوي او دا معنا یې په اجزاو کښی نه لیدل کیږي. د دې قسم ترکیبونو مثالونه دومره ډېر نه دي او په وروسته ډول بیانیږي.

**16-** (پرېږ) دا اصلاً یوه ارتباطي کلمه ده، چې د دې وروسته مصدرونو په سر کښې راغلې ده، له دې ترکیب څخه یو بل مفهوم راوځي چې له اجزاء څخه یې نه معلومېږي. لکه: پرېږ وتل – پرېږ باسل – پرېږ ویستل – پرېږ ښودل – پرېږ کول – مکر په ( پرېږ مینځل او پرېږ ولل) کښې د دوهم جزء معنا په خپل حال پاتی ده او بله معنا نه افاده کوي.

**17-** (پورې) لکه: پورې وتل–پورې ایستل– پورې باسل– پورې کول پورې وهل.

**18-** (کښې) په اصل کښې د ظرف توری دی چې د سابقې په صورت استعمالیږي لکه. کښېوتل، کښې ایستل، کښېباسل، کېښودل، کښېمنډل، کښېناستل، کښېنول، کښېکاږل، کښېکښل.

**19-** (دننه) دا سابقه له (دننه) څخه مخففه ده او یو څو مثاله لري لکه: ننه وتل– ننه ایستل– ننه باسل.

**20-** (جار) لکه: جاروتل، جارایستل، جار باسل.

**21-** (لاندې) لکه: لاندې وتل– لاندې ایستل– لاندې باسل– لاندې کول.

**22-** (را، در، ور) دا درې واړه ضمیري سابقې دي چې د مصادرو او افعالو په اول کښې راځي او د ظرف معنا هم پکښې ده لکه : راوستل، راکول، راتلل، راوړل، راخکل (کش کردن)، راوتل، راوخکل، درتلل، ورتلل، در کول، ورکول او نور.

**23-** (پرا) لکه: [1] پرانیتل، پرانستل = پرانیځل (په یوه معنا دی).

---

(1) **پر تلل هم غالباً له پراو تلل (وزن کردن) څخه جوړ شوی دی او د مفایسه کولو معنا ورکوي.**

**24-** (تېر) لکه: **تېروتل**، **تېرا**پستل، تېر باسل.

**25-** (بیـا) لکـه بیامونتـل = بیـا مونـدل (بیـا پـه معنـا کښـې څـه فـرق نـه راولي).

**26-** (ن) لکه : نغوړل، نغرل، نغوتل.

**27-** (بو) لکه بوتلل.

---

## له مستقلو الفاظو څخه د کلمو جوړونه

په پښتو کښې د الفاظو او کلماتو له ترکيب او يو ځای کولو څخه دا وروسته کلمې جوړيږي:

1. مرکب نومونه
2. مرکب صفتونه
3. مرکب فعلونه
4. مرکب قيود
5. مرکب ضميرونه

نو مونږ هم په دغه ترتيب د پښتو د ترکيباتو بيانول غواړو. له دې ترکيباتو څخه[1] عموماً يوه بله معنا معلوميږي چې هغه به د اجزاو له اصلي معنا سره هم څه مناسبت لري.

---

(1) دې ولو ترکيباتو ته صرفي ترکيبونه ويل کيږي. کوم ترکيبونه چ له هغو خه يوه کلمه جوړول مطلب وي، او د يوې کلم حکم مومي لکه غوږوالۍ ، هغه درست صرفی ترکيبونه دي او کوم چ د يوي کلم حکم نه مومي بلک هره کلمه پک . انله حيثيت لري هغه نحوي ترکيبونه دي لکه ( د لاس امسا).

## مرکب نومونه

په پښتو کښې مرکب نومونه څو قسمونه لري او د هغو د جوړولو د پاره هم بيل بيل صورتونه او لارې موجودې دي، مګر دلته د اختصار په غرض د فعلي او غير فعلي نوموتر عنوانو لاندې بيانيږي.

## غير فعلي نومونه ( د شيانو نومونه)

په غير فعلي نومو کښې ځينې د ذاتي او مادي شيانو نومونه دي ځينې غير مادي نومونه دي يعنې د معنا په لحاظ پکښې جلا جلا ډولونه ليدل کيږي، مګر دلته يې مونږ د لفظي صورتونو او قسمونو په لحاظ بيانووځکه چې د الفاظو په ترکيب کښې همدا شی مهم ښکاري.

په پښتو کښې د مرکبونو مود جوړوني بيان په وروسته ډول دی:

<u>اول قسم</u>: په پښتو کښې اول قسم مرکب نومونه هغه دي چې له دوو جلانومو څخه مرکب شوی او جوړ شوي وي دا قسم مرکب نومونه دا وروسته صورتونه لري:

**1-** اول صورت يې دا دی چې د دواړو کلمو تر منځ اضافي ارتباط موجود وي. يعنی يو مضاف اليه او بل مضاف وي. له دې قسم ترکيب څخه عموماً په پښتو کښې يوه بله معنا مراديږي او د يوې ګوښې او ځانله کلمې شکل پيدا کوي. دغه شان په دې رقم ترکيبونو کښې د

اضـافت (د) هـم عمومـاً حذفيږي دا راز مرکـب نومونـه بيـا پـر دوه ډولـه راځي:

الف :- هغه دي چې د ترکيب په وجه يې په اجزاو کښې څه تغير او بدلون نـه وي راغلـی لکـه: پـر هـر پاڼـه، ګـزك پاڼـه، برکـت بـوټی، مرغـۍ پښـه، غوايي ژبه، ټوپۍ ګل (ګل بابونه) خرغـوږ، خرولـه، شرغـشی، نمر ګل ، ليوغـونی [1] شـاتو مچـۍ ، سباناری ، نامـه غـوټی، کټمـل، بـوډۍ تـال، ماښـام سـترګه، سـهار سـترګه، زنګانـه سـترګه، سـرورخ، سـترګو رپ، بادپکې، غوږوالۍ، اورګاډی (ريـل). پيريـانو کټکـی (څلـور کونجـه تـور غونـدی کـانړی وي) مـلا بـانګك، نـس ناسـته (اسـهال) سـر پښـتـۍ – ګيـډړ واده (هغه باران چې په شين آسمان کيږي).

تبصره: په دې قسم نومو کښې ځينی خاص نومونه يعنی د کليـو او ځـايو نومونـه هـم موجـود دي لکـه: الـدا د مېنـه، سـلام مېنـه، کـرم کـور، مياګـانو ډېـری ، مياګـانو بانـډه، شـاخېل غونـډی، پښتـون کـوټ، سيالکوټ او نور.

ب :- هغه نومونه دي چې په اجزاو کښـې يـې تغيـر او بـدلون راغلـی وي لکه: غړوندی (د غاړې ونـد = بنـد) / پښندی = د پښـې ونـد / ترلـه (د تـره لـور) چر بانګك (د چرګ بانګك)، وژغونی (وزوغنی) –پښتـورګی – بـاډيوه (بـاد ډيـوه)، شـو لواښـه / تربـور (د تـره بـور = پـور) زړو کبـوی- مـالګوبې (د مالګې اوبه) – اېـروبې – غوړېچنـه – پيکـړه، زمرکټـی – مـيښ کټـی،

(1) يو بو ی دی چ رن ي د ليوه پو کي ته ورته دی.

غوبل (د غوايي پل) – غويمنډ = د غوايي منډ يا منډه)، غـوب لرګی (د غوبل لرګی) – اورپښتی (د اور لـه پښتـه)، اوسپن خړی (د اوسـپنې خـړه) کالو سر.

2- دوهم صورت يې دا دی چې د دواړو کلمو تر منځ د عطف ارتبـاط وي چې دې ته عطفي مرکب ويل کيدی شي. دا هم پر دوه رازه دی، يـو قـسم هغه دی چې په کلماتو او اجزاو کښې يې څه تغير راغلی وي او بـل قـسم هغه دی چې تغير پکښې نه وي راغلی.

الـف :- هغـه عطفـي ترکيبونـه چې پـه اجزاو کښـې يـې تغيـر نـه وي پـيښ شوی او د عطف توری هم پکښې نه وي دا دي:

مارمهۍ (يو دريابي مهی دی چې د مار په شکل وي يعنی هم مـار او مهی وي) / شوده پیۍ(يو بوټی دی) – لری بری / لوړه ژوره / مـرګ ژواك / ورکـړه راکـړه / پـړه وړه / چم ګاونـډ / مـۍ وريجـې- ناسـته ولاړه – کـندې کپرې – شنه زرغونه [1]

ب :- هغه عطفي ترکيبونه چې په کلماتو کښې يـې څـه نـه څـه تغيـر پـيښ شوی وي. د هغو مثالونه دا دي :

شوا روځ / انډوخر/ نر ښځی / سرو مال / ډنګ ډولۍ (ډانګ اوډولۍ).

<u>دوهم قسم</u>: دوهم قسم مرکب نومونه هغه دي، چې لـه اسم او صـفت څخه مرکب شوي وي يعنی يو جزئ يې اسم او بل جزئ يې صفت وي.

---

(1) **ددې ولو نومو په من ک اصلاً د عظف (او) شته لا کن د ترکيـب لـه املـه حـذف شوی دی.**

د داسې مرکبو نومو صورتونه په وروسته ډول دي:

**1-** اول صورت دا دی چې د پښتو د توصیفي ترکیب له قانون سره سم اول صفت او بیا موصوف راغلی وي. دا هم بیا دوه رازه دی یو هغه دی چې په کلماتو کښې یې څه تغیر نه وي راغلی او بل هغه دی چې تغیر پکښې پېښ شوی وي.

**الف :-** هغه مرکب نومونه چې له اسم او صفت څخه جوړ شوی وي او تغیر پکښې نه وي پېښ شوی دا دي:

---

اوږد غوږی [1] (خر) / شنه کوتره / مړه تبه / لوی اختر / کوچنی اختر / تورې اوبه / منځه ګوټه / غټه ګوته / کچه ګوته / اباسیند / ژیړی تبه / مړونه / کاپر ګل / سور ګلی / سپین زر / سره زر / سور اغزی / خړه کوتره / سره مرچ / نری جوار / غټ جوار / خوږه وله / توره غاړه / تورې مچۍ/ سرې مچۍ / زیړ لرګی / ډمبر ګلی (ګل جعفری) تور لمی / سورلنډی / وچولی / نری وریجې / وچکالي / شین ډنډ / سور منی (پسرلی) سورمېږی / ښانګه ورمېږي.

تبصره: د کلیو او ځایو په نومو کښې هم دغسې نومونه ډېر دي لکه:

سره خوا / توره خوا/ وازه خوا / بر کلی / لر کلی / نری تنګی / سپینکی تنګی / زرغون ښار / توره غونډۍ / توره شا / سپینه شا.

---

(1) د (ی) زیاتوالی کوم اساسی تغیر نه دی، ولې چې د کلمې د اجزاو شکل نه بدلوي.

ب :- هغه مرکب نومونه چې لـه اسم او صفت څخه جوړ شوي وي او څه تغیر هم پکښې راغلی وي دا دي:

---

سرېښنه (سوری ښنه)، تېزندی (تېزوند)، سره مخه، جوړوبې= آبشار (یعنی ځوړې اوبه)، کږ لیچ (کج گردشی)[1] خوړوبی، سړوبی (چې اوبه پکښې سړېږي) تودوبی – حمام (ځکه چې اوبه یې تودې وي) ځوړوبی، پرکتی (ښایی چې پردی کتی= بچې وی) سروبی (یو ځای دی چې سرې اوبه لري)، پردېس (پردی دیس)، خړوبې (خړی اوبه)، مړغونی= تربوز ابو جهل [2]

2- دوهم صورت یې دا دی چې موصوف د مخه او صفت یې وروسته راغلی وي لکه: سرکوزی– مخ ځوړ– ورځلوی (قیامت) سالندی– سپند لاهو– نرسوی (سوی انار)– لوخړه (ښایي چې اصل یې خړلوگی وي) – مخ پیچومی– او نور.

3- دریم صورت دا دی چې اول جزء یې عددي صفت وي چې د پته عددي مرکب هم وایي لکه: درې ښاخی، درې غاښی، پنج غاښی، دوپټه، دوه خوخی، دو شاله، درې ورگی (اشتر سه ساله)، پنجکوړه (یو ځای دی شاید په اصل کښې پنج کوره وي)، دوه سری (د یوه غره نوم دی)

دریم قسم : دریم قسم مرکب نومونه هغه دي چې لـه اسم او فعلي مادې څخه ترکیب شوی وي. په دې قسم مرکبو نومو کښې اول جز غالباً

---

[1] که چ د کاږې لیچ په شان وی.

[2] که چ مؤې غذ لري.

يـا فاعـل او يـا مفعـول وي او دوهـم جـزيې فعـل وي، لکـه دا وروسـته مثالونه: غابس چيچی (يو بوټی دی)، هډماتی، زړه بداوی، کور ودانې (ماندينه) زړه سوی، نس خوږی، سر خوږی، نظرمات، اودس ماتې، روژه ماتې، سره لړې تبه (ځکه چې ساړه لری)، ملاتړ (کومك) د مرکبې آلې نومونه هم په دې قسم کښې داخليږي. يعنې مرکبې آلې په پښتو کښې له اسم او فعلي مادې څخه جوړيږي چې اول جزء يې په معنا کښې عموماً مفعول وي د دې مرکبو آلو په آخر کښې کله (ونی، ی) هم د لاحقو په ډول زياتيږي لکه: اور لړونی، سر تړونی، مچشړونی، غابس ټومبونی، رګ وهونی، غوږ وهونی، اوب شيندی، لاس پاکی، لاس وچوونی، لاړ ګير، اورنيوونی، لاس ولونی، اورلړ، مچشړ.

کله د اسم او فعلي مادې ترکيب او يو ځای کېدل په اضافي ډول هم وي لکه پښې ارته، نمر پرېواته، نمر خاته، کوچمال، څڅوبی (اوبو څڅ)

يادګيرنه: په پښتو کښې ځينې داسې مرکب نومونه هم شته چې د دواړو اجزاو يا د يوه جزء معنا او مفهوم يې پوره نه معلوميږي او تقريباً نا مفهومې کلمې وي لکه:

کال کونډی، مار کونډی، بډه ګال، کټه ميری، کنی کاټر، ګور ګټی، شين تغ، بانی چغ، خر پوسی، سټ کوری، برہ ګره، خوږلوړی (شرين مزه) بورچنده (بچه مرده)

**********

# د فعلي نومونو ترکیب

لـه فعلـي نومـو څخـه مطلب مـصدرونه او د حاصـل مـصدر نومونـه دي. مرکـب مصدرونه پـه پښتـو کښـې د کـول او کېدل پـه واسطه جوړیږي او دا وروسته صـورتونه لري:

**1-** چې (کول او کېدل ) د ذاتي یا مجرد اسم نه وروسته راشي. لکه:

اشر کول، تلوار کول، څار کول، پام کول، لوکول، اسره کول، بـره کـول، پلمـه کـول، توره کول، ډنډوره کول، جرګه کول، کوژده کول، اوره کـول، واښـه کـول، ژړا کـول، رڼا کول، خندا کول، غلا کول، پرې کول، سوری کول، خپلوي کول، وروري کـول، سیـالي کول، ختې کول، یوې کول، ماتې کول، زارۍ کول، بخی کول، دارو کول، جارو کول.

**2-** چې اول جز یې بل بسیط مصدر او دوهم جز یې کـول او کېـدل وي لکـه: وهـل کـول، چیچل کول، تلل کول، ګنډل کېدل، شړل کېدل، تلل کېدل.

**3-** چې اول جز یې صفت وي لکه: ملامت کول، پرې کول، خړ کول، آشنا کول،پخلا کول، تالاکول، ویده کول، خپه کول، جوړه کول، ښکاره کول، باري کول، خوندي کول، پاتې کول، ویلې کول، ترې کول، ورې کول، لاهو کول.

**4-** چې اول جز یې قیود او آدات وي لکه: کښته کول، وروسته کول، یوازې کول، ځانته کول، ایسته کېدل، بس کېدل، پورې کول، باندې کول، لاندې کول، پرې کول.

**یادګیرنه:** په دې ټولـو مـصدرو کښې چې د "کـول" پـر ځـای " کیـدل " راشـي نـو کېدل والا مصدر ترې جوړیږي.

**5-** بل قسم مرکب مصدرونه هغه دي چې تر کول او کېدل د مخه له یوه څخه زیات اجزا لري لکه: مخه ښه کول، تور بریښ کـول، راشـه درشـه کـول، لـټ پلـټ کـول، خـواره واره کول، بې پردې کول، بې لارې کول، خوابدی کول، ببخونده کول، نا پوهي کول، ترلاسـه کول، پرځای کول، ترمخ کول، ترمې ترمې کول، درې درې کېدل، پـه یـوه خولـه کېـدل،

تار پتار کېدل، پورې راپورې کيدل، پس پس کول، را په زړه کول، لاندې باندې کېدل، هغه دغه کول او نور.

**6-** پرته لـه کـول او کېـدل څخه د ځينو نورو بسيطو مـصدرو پـه واسـطه هـم مرکـب مصدرونه جوړيږي لکه:

لاس وهل، زړه وهل، پورې وهل، ټک وهل، لاندې وتل، لاندې ويستل، تر غاړې وتل.

## تبصره:

الف :- د پښتو مرکب مصدرونه د معنا په لحاظ پر دوه ډوله دي :

يو قسم هغه دي چې د "کول او کېدل" سره مرکب جزء د مفعول حيثيت ولری او د فعل جزء ونه ګرځي لکه: تلوار کول، وانبه کول، وهل کول، لاس وهل، او بل قسم هغه دي چې د کول او کېدل سره مرکبه کلمه د مفعول حيثيت و نه لري بلکې د فعل جزء او د فعل په مفهوم کښې داخله وي. چې په دې صورت کښې به جلا مفعول غواړي لکه: دوست خپه کول، حميد پخلا کول، ماشوم ويده کول، دروازه پورې کول، ديوال پورته کول، غنم لو کول، ديوال سوری کول، ميخ ټک وهل.

کوم مصدرونه چې اول جزء يې صفت او يا قيود او ادوات وي؛ هغه ټول پـه دو هم قسم کښې داخليږي او کوم چې اول جزء يې مصدر وي هغه په اول قسم کښې داخل دی او کوم چې اول جزء يې اسم وي په هغو کښې دواړه قسمونه راځي.

ب :- هغه کلمی چې په (ا، ه، و، ی) سره مختومې وي لـه هغو څخه عموماً د "کول او کېدل" په ذريعه مصدرونه جوړيږي.

ج :- د کول والا مصدرونه ټول متعدي دي لکه پخلا کول او پـه (کېـدل والا) کښې کـوم چې اول جزء يې مصدر وي هغه هم متعدي دي لکه وهل کېدل، او کوم چې اول جز يې صفت يا حرف وي په هغه کښې ځينی لازمي راځي لکه:

ويده کېدل، پورته کېدل او ځينی متعدي وي لکه : خوندي کېدل، باندې کېدل.

## مرکب حاصل مصدرونه

مرکب حاصل مصدرونه له مرکبو مصادرو څخه په لاندې ډول تیارېږي:

**7-** په ټولو کول والا مصادرو کښې د "ل" پر ځای "نه" راځي او مرکب حاصل مصدر ځنې جوړېږي لکه: تلوار کونه، پخلا کونه، وروسته کونه.

**8-** په کېدل والا مصادرو کښې د "ل" پر ځای (نه اوه) راوړل کیږي او حاصل مصدر ترې جوړېږي لکه : پخلا کېدنه، پخلا کېده او نور.

******

# مرکب صفتونه

مرکب صفتونه هم لکه د مرکبو نومو لـه دوو یا زیاتو کلمو څخه جوړیږي او په آخر کښې یې کله (ی، اوه) هم د لاحقو په ډول زیاتیږي. په دې صفاتو کښې ځینې نسبتي او ځینې فعلي وي او د لرلو او کولو معناوې ترې معلومیږي. پـه پښتـو کښـې د مرکبو صفاتو مختلف قسمونه په وروسته ډول دي :

**1-** اول قسم مرکب صفتونه هغه دي چې لـه اسم او صفت څخه مرکب شوی وي. دا هم بیا دوه صورته لري :

الف :- هغه صفتونه دي چې صفت او موصوف پکښې په اصلي ډول استعمال شوی وي یعنی اول صفت او ورپسې موصوف وي لکه:

تریو مخی، تور مخی، تور سری، سپین سری، سپین ږیری، غونډ سری، کوږ سترګی، خږ سترګی، شین سترګی، کلك سترګی، مړسترګی، پوچ خولی، وازخولی، غوړژبی، چینګ خولی، لوی خولی، کیڼ لاسی، تنګ زړی، کلك زړی، هیر زړی، تـور غـوږی، سور بونی، بد غونی، سوړ وږمی، وچموری، ټول واکی، خپلواکی، غټ سری، لوی خیټی، سوړ بویه، خوږ ژبی، بدمرغه، ځوانیمرګ، لنډ فکری ، بر لاسی.

ب :- هغه صفات دي چې په مقلوب ډول وي یعنی لومړی موصوف او وروسته صفت راغلی وي لکه : سر لوړی، سر ټیټی، شا ټیټی، سر تور، مخ تور، لږ مون خوړینی، زړه چاودی، پښې لوڅی، مخ روښی، زومړی، ورور مړی، مـور مړی، پلار مړی، مخ پټی غوتی، کور ګډی، کور ډاګی، کور ورانی، سر پټی، سر لوڅی.

**2-** هغه مرکب صفات دي چې لـه عددي صفت او اسم څخه د توصیفي ترکیب پـه ډول جوړ شوی وي لکـه: یـو سترګی، یـو لاسی، یـو وزری، دوه مخـی، دوه ژبی، څلـور بولی، دوه سری، دوه بندی اګی، لس ډزی ټوپك، شپږ ډزې تمانچه، دوه کوره، دوه پوړه، درې چته، دوه لاسه، درې ګوټه، دری کونجه، دوه دونه (دو چند) دوه برخې، دوه برغې، څلوربولی (شاید چې څلور پلی وی).

**3-** دریم قسم مرکب صفتونه هغه دي چې له دوو نومو څخه جوړ شوی وي لکه: شناز ګیډی، غندل غاړی، سندر غاړی، لوبغاړی، رنځور غاړی، نمر مخی، پی‍ـې مخی، منځګوره (درمیانه، متوسط).

**4-** څلورم قسم صفتونه هغه دي چې له اسم او فعلي مادې څخه مرکب شوی وي. په دې قسم صفاتو کښې اول جزء غالباً مفعول وي لکه:

زړه سواندی، کور ودانې، کور ورانی، نوم ورکی، خبرلوځی (خبر لوځ)، نوم وړی، پوروړی، ملاماتی دودونه، تی روی هلك، اور مړ، لاس پاکې، پوز پاکی، ډوډی غړپ، تالی څټ، لارو هونی، مور روی ، سر غړاندی، ژب غړاند ، او کله پکښې اول جزء فاعل او یا ظرف هم وي لکه : بادوړی، نمرسوی، نر سوی، مینه وړی، کوځه ډب.

**5-** پنځم قسم صفات هغه دي، چې له مصادرو څخه جوړ شوي وي او مرکب فعلي صفات بلل کیږي چې دا وروسته صورتونه لري.

الف :- چې دوهم جزء یې د متعدي "لام والا" او "ول والا" مصدرو څخه د (ی) به راوړلو جوړ شوی وي، یعنی دوهم جز یې مفعولي صفت وي او اول جز یې فاعل وي لکه: بلاوهلی، مار خوړلی، خدای ببنلی[1] تیغ وژلی، ټوپك ویشتلی، خدای شرمولی او کله یې اول جز مفعول هم راځي. لکه : آزار ګټلی.

ب :- هغه دی چې له کول والا او ځینو ول والا مصدرو څخه د اول جزء د وروسته د (کړی) په راوړلو سره جوړ شوی وي. دا قسم صفات عموماً مفعولي صفات دي لکه پخلا کړی، تالاکړی، ویده کړی، تېره کړی، ښکاره کړی، مات کړی، تور کړی، مړ کړی او کله ور سره صریح مفعول هم راځي لکه: لاس پرېکړی، پوز پریکړی، غوږ پرېکړی.

ج :- هغه دي چې د کیدل والا مصادرو څخه د (شوی) په را راوړلو جوړیږي. دا قسم صفات له لازمي مصادرو څخه فاعلي او له متعدي مصادرو څخه مفعولي راځي لکه:

پخلا شوی، تالا شوی، مات شوی، مړ شوی، بلل شوی.

---

(1) **درست فعلي صفات درې صیغ   لری په ملینه (ی) د مفرد مذکر او په معروفه (ي) د جمع مذکر او په مجهوله (ې) د مفرد مونث او جمع موْنث د پاره را  ي.**

**تبصره**: یو څه مرکب صفات نور هم شته چې له دغو قسمو څخه وتلی دي لکه:

ژړغونی، مړ ژواندی ، زړه پورې ، پس مرګی، مات ګوډ ، سپیندروبې، غوړه مال.

د :- که چېرې د کول او کېدل والا مصادرو په آخر کښې د لام پر ځای (ونکې- ونی) راوړی شي نو په دې صورت کښې هم مرکب فعلي صفات جوړیږي. دا فعلي صفات په متعدی معلومو او لازمي مصادرو کښې فاعلي صفات بلل کیږي لکه: تلوار کوونکی، پخلا کوونکی، ماتوونکی، پورته کوونکی، پخلا کیدونکی، پاتې کېدونی، او په متعدي مجهولو مصادرو کښې مفعولي صفات باله شي لکه :

بلل کیدونکی، وهل کیدونکی، پرې کیدونکی، پرې کیدونی، باندې کیدونکې.

# مرکب فعلونه

مرکب افعال هغه دي چې د امدادي افعالو او خصوصاً د " کړل او شول " د ګردان او صیغو په مرسته جوړ شوې وي.

په پښتو کښې درست مرکب افعال حالیه وي که ماضیه په منظم او قانوني ډول جوړیږي او ټول د یو قانون او قاعدې سره سم راځي چې بیان یې په لاندې ډول دی :

**حالیه افعال**: د حالیه افعالو د جوړولو او ترکیب صورتونه دا دي:

**1-** (استمراري حال) "له کول والا" مصادرو څخه په دې شان سازیږي چې د "ل" د حذف نه وروسته د (م- و- ې- ئ- ي) متصل فعلي ضمیرونه راوړل کیږي لکه: له پخلا کول څخه پخلا کوم– پخلا کوو– پخلا کوې– پخلا کوئ – پخلا کوي[1] (په معروفه ي) او له کېدل والا مصادرو څخه هم استمراري حال په دغه شان راځي، مګر دومره ده چې "د" په "ږ" بدلیږي لکه له پخلا کېدل څخه پخلا کیږم، پخلا کیږو ، پخلا کیږې، پخلا کیږئ، پخلا کیږي.

---

**(1) په پ تو ک ی د حال د پاره دغه پن ه صیغی استعمالیږي چ اوله د مفرد متکلم، دوهمه د جمع متکلم دریمه د مفرد مخاطب، لورمه د جمع مخاطب او پن مه د مفرد غائب، جمع غایب او مذکر او مونث د پاره په شریك أول را ي.**

**2-** (مطلق حال) له کول والا مصادرو څخه د اول جزء نه وروسته د (کړم، کړو، کړې، کړئ، کړي "په معروف ي") په راوړلو سره لاس ته راځي لکه له[2] پخلا کول څخه: پخلا کړم، پخلا کړو، پخلا کړې، پخلا کړئ، پخلا کړي، دغسې له ځینو "ول والا" مصادرو څخه هم په پورته ډول راځي یعنی د اول جزء د وروسته دغه وړاندې افعال ګردانیږي لکه له سپینېدل څخه سپین کړم– سپین کړو– سپین کړې– سپین کړئ– سپین کړي.

او له کېدل والا او ځینې "یدل والا" مصادرو څخه د اول جزء په وروسته کښې د "شم، شو، شې، شئ، شي" په ګردانولو د مطلق حال صیغې جوړیږي لکه له پخلا کېدل[1] څخه پخلا شم، پخلا شو، پخلا شې، پخلا شئ، پخلا شي. یا له پاکېدل څخه پاك شم، پاك شو، پاك شې، پاك شئ، پاك شي.

**3-** (امکاني حال) امکاني حال له ټولو مصادرو څخه د مصدر په پای کښې د "ی" یا "ای" په زیاتولو او بیا د "شم، شو، شې، شئ، شي" په ګردانولو جوړیږي لکه له وهل څخه وهلی شم = وهلای شم، وهلای شو، وهلای شې، وهلای شئ، وهلای شي. یا له پخلا کول څخه پخلا کولی شم = پخلا کولای شم، پخلا کولای شو، پخلا کولای شې، پخلا کولای شئ، پخلا کولای شي.

**4-** (مجهول حال) مجهول استمراري حال له کېدل والا متعدي مصادرو څخه د معلوم حال په قاعده جوړیږي یعنی د"ل" پر ځای متصل فعلي ضمیرونه راځي او "د" یې په "ږ" اوړي لکه:
له وهل کېدل څخه وهل کیږم، وهل کیږو، وهل کېږې، وهل کېږئ، وهل کېږي.
مجهول استمراري حال په دې ډول هم جوړیږي چې د بسیطو مفعولي صفاتو یعنی "ی والا" مفعولي صفاتو په آخر کښې (شم، شو آلخ) راوړی شي لکه له وهلی څخه وهلی شم (زده می شوم) وهلی شو، وهلی شې، وهلی شئ، وهلی شي.

---

**(2) له پخلا کول  خه مطلق حال صیغ  د "کول" د مترادف مصدر "کؤل" په کومك جوؤیاِي.**

**(1) له پخلا ک ـدل  خه د مطلق حال صیغ  د "ک ـدل د مترادفو مصدر (شول) په مرسته جوؤیاِي.**

او د مجهول مطلق حال د جوړولو طريقه دا ده چې د مفعولي صفاتو پـه آخر کښـې (شم، شو تر آخره) ګردانيږي مګر د بسيطو مفعولي صفاتو د مخه يو "و" هم زياتيـږي لکه له وهلی څخه ووهلی شم (زده شوم) ووهلی شو، ووهلی شې، ووهلـی شـئ، ووهلـی شي او د مرکبو مفعولي صفاتو د مخه "و" نـه زياتيـږي لکـه لـه پخلا کړی څخه پخلا کړی شم[1] پخلا کړی شو، پخلا کړی شې، پخلا کړی شئ، پخلا کړی شي.

**5-** (مستقبل) د مستقبل صيغې ټولې د حال لـه صيغو څخه جوړيـږي او نـور څه نـه غواړي خالی "به" په لاژمو ځايو کښـی راوړل کيـږي. مـثلاً د استمراري مستقبل د پاره "به" د استمراري حال نه وروسته راځي لکه: پخلا کوم به، پخلا کوو به، پخلا کوې بـه، پخلا کوئ به، پخلا کوي به، يا : پخلا کيږم بـه، پخـلا کيـږو بـه، پخـلا کيـږې بـه، پخـلا کيږئ به، پخلاکيږي به.

او د مطلق مستقبل د پاره "به" د مطلق حال په منځ کښې راوړل کيږي لکه:

پخلا به کړم، پخلا به کړو تر آخره يا پخلا به شم، پخلا به شو تر آخره.

دغسې پـه امکـاني مستقبل کښـې "بـه" د (شـم، شـو" څخـه مـخ کښـې راځـي. لکـه وهلای به شم، وهلای به شو تر آخره او پـه مجهـول مطلـق مسـتقبل کښـې "بـه" لـه "و" نـه وروسته او ياد "کړي" نه مخ کښې راځي لکه: وبه وهلی شم، وبه وهلی شو تر آخره پخلا به کړی شم، پخلا به کړی شو تر آخره [1]

**6-** (د امر صيغې) د امر صيغې هم لـه حال څخه جوړيـږي يعنـی کـه د اسـتمراري حـال د اصلي مادې په وروسته کښې د متصلو ضميرونو په ځای د مفرد د پاره د خطاب "ه" او د جمع د پاره "ئ" راوړی شـی نـو اسـتمراري امر ځنـی جوړيـږي لکـه (پخـلا کـوه – پخـلا کوئ – يا پخلا کيږه، پخلا کيږئ) له ((پخلا کـوم، پخـلا کيـږم)) څخـه جـوړ شـوي دي او که چېرې دغه نښې د مطلق حال د وروسته راشي نو مطلق امر ځنې لاس ته راځي لکه:

---

(1) **دلته کاف ساکن ويل کيإي**

[1] **"به" چ په جمله ک راشی نو لـه فعل خه جلا کيإي او د اول نـوم سره پيوستـه را ي لکه زه به حميد پخلا کؤم.**

(پخلا کړه، پخلا کړئ، یا پخلا شه، پخلاشئ) چې لـه "پخلا کړم، پخلا شم" څخه ماخوذ دي.

## ماضیه افعال:

**1-** (استمراري ماضی) له کول والا او کېدل والا مصادرو څخه په آسان ډول جوړیږي او د مصدر په آخر کښې د هرې صیغې د پـاره خپـل خاص فعلي ضـمیرونه یعنـی "م، و،ې، ئ، ه خفی، ل، ه جلی، ی) راوړل کیږي لکه لـه پخلا کول څخه : پخلا کولم، پخلا کولـو ، پخلا کولې، پخلا کولئ، پخلا کاوه، پخلا کول، پخلا کوله، پخلا کولې[2] او لـه پخلا کېدل څخـه (پخـلا کېـدم، پخلا کېدو، پخـلا کېـدې، پخـلا کېـدئ، پخـلا کېـده، پخـلا کېدل، پخلا کېدله، پخلا کېدلې.

**2-** (مطلقه ماضي) له کول والا مصادرو څخه داسی جوړیږي چې د اول جزء د وروسـته (کړم، کړو، کړې، کړئ، کړ، کړل، کړه، کړې) ګردانیږي. لکه لـه پخلا کـول څخه پخلا کړم، پخلا کړو، پخلا کړې، پخلا کړئ، پخلا کړ، پخلا کړل، پخلا کړه، پخلا کړې او لـه "کېدل والا" مصـادرو څخه د مطلقې ماضي د پاره د اول جزء نه وروسـته (شـوم، شـوو شوې،شوئ،شو، شول، شوه ، شوې) ګردانیږي لکـه لـه پخلا کېـدل څخـه : پخلا شـوم، پخلا شوو، پخلا شوې، پخلا شوئ، پخلا شو، پخلا شول، پخلا شوه، پخلا شوې.

**3-** (قریبه ماضی) له کول او کېدل والا مصـادرو څخه پـر دې ډول جوړیـږي چـې د مرکبـو فعلي صفاتو په وروسته کښې (یم، یو، یې، یئ، دی، دی ده، دي) راوړل کیږي لکه لـه پخلا کول څخه:

پخلا کړی یم، پخلا کړی یو ، پخـلا کـړي یـې، پخـلا کـړی یـئ، پخـلا کـړی دی، پخلا کړي دي، پخلا کړې ده، پخلا کړی دي، یا لـه پخلا کېدل څخه:

پخلا شوی یم، پخلا شوی یو، پخلا شوې یې، پخلا شوې یئ، پخلا شوی دی، پخلا شوې ده، پخلا شوي دي.

---

[2] **په ماضي ک عموماً اته صیغ را ي چ په ترتیب د مفرد متکلم، جمع متکلم، مفرد مخاطب، جمع مخاطب، مفرد غایب مذکر، جمع غایب مذکر ، مفرد غایب مؤنث او جمع غایب مؤنث د پاره دي.**

4- (بعیده ماضی) لـه کول والا او کېدل والا مصادرو څخه پـه دې شان جوړېږي چې د مرکبـو فعلي صـفاتو نـه وروسـته (وم- وو- وې- وئ- و- وو- وه- وې) ګردانیـږي لکـه لـه پخلا کول څخه :

پخـلا کـړی وم-پخـلا کـړی وو- پخـلا کـړی وې- پخـلا کـړي وئ- پخـلا کړی و-پخلا کړي وو – پخلا کړې وه – پخلا کړې وې- یـا لـه پخلا کېـدل څخه:

پخـلا شـوی وم– پخـلا شـوي وو– پخـلا شـوې وې– پخـلا شـوي وئ– پخلا شوی و– پخلا شوي وو– پخلا شوې وه– پخلا شوې وې.

5- (تمنایي ماضي) له کول والا او کېدل والا مصادرو څخه د تمنایي ماضي د جوړوني طریقه دا ده چې د فعلي صفاتو په پای کښې "وی، وای" راوړل کیږي. لکه لـه آشنا کول څخه اشنا کړی وای، یا لـه آشنا کېدل څخه آشنا شوی وای = وی.

6- (احتمالي ماضي) لـه دغو مصادرو څخه د احتمالي ماضي د جوړولو د پاره د فعلي صفت په آخر کښې (به یي، به وي) راوړل کیږي لکه: آشنا کړی به یی، آشنا شوی به وی.

7- (امکاني ماضی) د امکاني ماضي د جوړوني د پاره د ټولو مصادرو په وروسته کښې ((ی = ای) زیاتیږي او بیا (شوم، شوو، شوې، شوئ، شو، شول، شوه، شوې) ګردانیږي لکه له وهل څخه:

وهلی شوم– وهلی شوو– وهلی شوې– وهلی شوئ– وهلی شو– وهلای شول– وهلې شوه– وهلی شوې– یا له ویده کول څخه:

ویده کولای شوم– ویده کولای شوو– ویده کولای شوې– ویده کولای شوئ– ویده کولای شو– ویده کولای شول– ویده کولای شوه– ویده کولای شوې.

تبصره: دا پورته د استمراري امکاني ماضی صیغې وې او که د مطلقې امکاني ماضي صیغې جوړول وغواړو نو په اول کښی به یې یو "و" هم راوړو لکه: ووهلای شوم، و وهلای شوو تر آخره.

**8-** (مجهولې ماضي ګانې) استمراري مجهوله ماضي پردې ډول جوړیږي چې له (کولی، کېدلی) څخه وروسته (شوم، شوو تر آخره) ګردانیږي لکه له آشنا کول څخه آشنا کولی شوم او له آشنا کېدل څخه آشنا کېدلی شوم، او مطلقه مجهوله ماضي داسې راځي چې له کړی څخه وروسته (شوم، شوو تر آخره) ګردانیږي. لکه له آشنا کول څخه آشنا کړی شوم. له پخلا کول څخه پخلا کړی شوم. او د قریبې، بعیدې، تمنایي او احتمالي ماضي ګانو د جوړوني د پاره د مفعولي مرکب صفت مثلاً( پخلا کړی شوی) په پای کښې د دغو ماضي ګانو علامې

راځي لکه لـه پخلا کول، کېدل څخه پخلا کړی شوی يم، پخلا کړی شوی وم، پخلا کړی شوی وای، پخلا کړی شوی به وي.

تبصره: پـه پښتـو کښـی لکـه چې ښکـاره ده ټول مجهـول او امکـاني افعـال مرکب افعـال دي او د امـدادي افعـالو پـه کومـك جوړيـږي او پـه معلومو غيـر امکـاني افعـالو کښـی بيـا څه مرکب او څه بسيط دي. نـو معلومه شوه چې مرکب افعـال پـه پښتـو کښـې ډېر دي او پـوره بيـان يـې زيات وخت غواړي.

## مرکب قيود او ادوات

مرکب قيود که څه هم پـه پښتـو کښـی نـسبتاً کم دي مګر بيـا هـم پـه وروسته ډول بيانيږي:

**1-** (د تعميم قيود) له څېلمې، لـه مخـه، لـه يـوې مخـې، لـه سـره، لـه يـوه سره، ګرد سره.

**2-** (د اشارې او ظرف قيود) دلته، هلتـه، دغلتـه، هاغلتـه،[1] هالتـه، دې خوا، هغه خوا، داسې، هاغسې، دغسې.

**3-** (د علت قيـود) څـه لـه = څـه تـه – څـه د پـاره = څـه رنګـه، لـه املـه، له کبله.

**4-** (د مقدار قيود) څومره، څونه، دومـره، هـومره، هغـومره [2] هـاغومره، دغومره، لوکوټی، لږ غوندې، لږ شان.

---

(1) له (لته) او (دا، دغه ، هاغه) څه جوړ دی، دغه شان، داس ، هاغس له دا ، هاغه او (سی) نه مرکب دی.

**5-** (د تاکید قیود) هرګوره، خامخا، ارومرو، هو بهو، کټ مټ.

**6-** (د نفی د تاکید قیود) هیڅکله، هیچرته، هیڅ شان، هیڅ ځای، هیڅ وخت.

**7-** (د مفاجات قیود) نا څاپه، نا ګومانه، نا ببره، نا پامه.

**8-** (د استفهام قیود) کوم پلو، کومه خوا، چېرته، څه خیل، څه ډول، څه راز.

**9-** (د تشبیه قیود) لکه چې، په څېر، په شان، په رنګ، په دود، شانته.

**10-** ځینی نور مرکب قیود چې د بېلو بېلو معنا ګانو د پاره راځي دا دي :

تل تر تله، هر کله، پرله پسې، ژر تر ژره، یو لـه بله، یو په یو، سم د لاسه، څه نه څه، څه لاځه، هر وخت، شامدام، خدای زده، خوچه، تر څو، څو چې، تر هغه چې، خوشی په خوشی، هیڅ ببڅه، وچ په وچه او نور.

## مرکب عددونه او ضمیرونه

هر کله چې مرکب ضمیرونه او عددونه په پښتـو کښـې دومـره ډېر نـه دي نو ځکه ځانله رانه وړی شول.

**1-** (ضمیرونه) مرکب ضمیرونه غالباً دا دي:

الـف :- دا وروسـته اضـافي ضـمیرونه پـه مرکبـو ضـمیرو کښـی شـمېرل کیږي لکه (دده– د دې– د هغه– د هغې– د دوی– د هغوی) دا رنګ کـه

---

(2) **د اشارې له کلمو او (مره، نه) څه جوړ شوی دی.**

په (ستا، ستاسی، زما، زمونږ) کښې "ز، س" جلا وبولو نو هم مرکب ګڼل کیږي.

ب :- ځینې مبهم ضمیرونه لکه: هر څا، هر څوك، هر څه، هیڅا، هیڅوك، نور څوك، بل څوك، نور څا، بل څا، نور څه، بل څه، یو څا، بل یو، هر یو.

ج :- ربطي ضمیرونه لکه: څا چې، څه چې، هر څوك چې، هر څه چې، هر یو چې، ځینی چې، څومره چې، کوم چې، پکښې (په هغه کښی)، تري (تر هغه)، پرې (پر هغه) .

**2- عددونه :**

الف :- له لسونه په پورته بې له یو څو عددو څخه نور ټول اعداد مرکب ګڼل کیږي لکه: یو ولس، دولس، دیارلس، څوارلس، پنځلس، شپاړس، اولس، اتلس، نولس، یوویشت، دوه دېرش، درې څلوېښت، یو شپېته، دوه اویا، یو نوي او نور...

ب :- د ټولو اعدادو په آخر کښې د مذکر د پاره (م) او د مونث د پاره (مه) راوړل کیږي. او رتبي عدد ترې جوړیږي لکه: دوهم، دریم، څلورم، پنځم، شپږم، اوم، اتم، نهم، لسم، شلم، دېرشم، سلم تر آخر مګر د ارقم اعداد د مشتقي اعدادو رنګګ لري ولې چې یو حرف پکښې زیات شوی دی. دغه شان دېرش، څلویښت، پنځوس، شپېته، اویا، اتیا، نوي هم مشتقي عددونه معلومېږي چې له (درې، څلور، پنځه، شپږ، اووه، اته، نه) څخه جوړ شوي دي.

## د الفاظو تکرار

په پښتو کښی د الفاظو او کلماتو تکرار هم ډېر ليدل کيږي. دا تکرارونه د ځينو معنوي مقصدونو د پاره هم راځي، يعنی کله پکښې مقصد تاکيدوي او کله ورځخه يوه بله معنا هم اخېستل کيږي چې هغه معنا يې لـه يوه لفظ ځخه نشي مرادېدی، لکه (پټ پټانی) چې د يوې لوبې نوم دی او دا معنا يې لـه يو جزء ځخه نه معلوميږي. دغه دواړه قسمونه په وروسته ډول بيانيږي :

<u>د الفاظو تکرار د تاکيد د پاره</u>: تاکيد او نه تاکيد غالباً له دې ځخه معلوميږي چې که چېرې د يوه لفظ يو جزء په خپله معنا پوره دلالت کـاوه نوله دې ځخه ثابتيږي چې بـل جز يـې د تاکيـد دپـاره دی. مګـر د لفظي استعمال په لحاظ دا قسم تکرارونه ډېر صورتونه لري او بيان يـې پـه دې لاندې ډول دی:

<u>اول قـسم</u>: هغـه دی چـې دواړه معنـا دار لفظونـه وي لکـه: شـاړ شـپاړ ، ټوکې ټکالې، ټنګ ټکور، چپه چپتيا ، چال چلند ، تش تـور، شـاړ شـډل، ټك ټوك،لوځ لغړ، ډنګ ډولی، اخوا دېخوا .

<u>دوهم قسم</u>: هغه دی چې يو لفظ يې معنا دار او بل يې تقريباً بې معنـا وي چـې پـه دې کښـې تـابع مهمـل هـم داخليـږي او دا وروسـتـه صـورتونه پکښې موجود دي :

**1-** اول صورت دا دی چې اصله کلمه وړاندې او تابع يې وروسته وي.

الف :- په دې کښې تر ټولو مشهور او زيات صورت دا دی چې د اولې کلمې د ړومبي حرف په ځای (م) راځي او هغه لفظ تکرار يږي لکه: ډوډی موډی، لرګی مرګی، لاس ماس، ګوته موته، ډيوال ميوال، کور مور، کوزه موزه ، سړی مړی، مګر د کومو نومو په سر کښې چې ميم وي نو په هغو کښې اصل نوم تکراريږي لکه :

منګی منګی، مال مال، موټر موټر، مار مار، مړی مړی.

ب :- کله د اول حرف په ځای (پ) راځي او تکراريږي لکه: لوښ پوښ، مړ پړ، خړ پړ، زوړ پوړ، کلك پلك، سوړ پوړ، يخ پخ، وريت پيت، خل پل، وار پار، ليت پيت، نيغ پيغ، چغ پغ، لوښې پوښې، اړ و پړ، چټ پټ، غوړ پړ، شوك پوك.

ج :- کله د اول حرف په ځای (و) راځي او تکراريږي لکه:

کوړ ووړ، ګډ وډ، ګاري واري، ښانګې وانګې، کړه وړه، سټ وټ، چل ول ، تالاوالا ، خور وور، دړې وړې، دانه وانه:

د :- چې اول حرف يې په (ب) تبديل او مکرر شي لکه: ارجل برجل، ډ ډبډ ، سوټ بوټ، جل بل، ايله بيله، ايشته بيشته، تبر ببر، ګړ بړ.

ه :- بل قسم هغه دی چې د دوهمې کلمې په منځ کښې (و) زيات شوی وي لکه:

ډب ډوب – ټس ټوس – کړپ کړوپ – کړس کړوس – ډز ډوز – زوګ زوګ – شر شور – ډنګ ډونګ – ټك ټوك – خړس خړوس.

و :- چې د اولې کلمې (ی) يا (و) يې په دوهمه کښې په الف بدل شوی وي لکه: ډول ډال، ټول ټال ، ټيپ ټاپ، ټپل ټال ، چېړ چاړ.

تبصره: ځینی نور مثالونه چې په جلا جلا ډول راغلي دي دادي:

نوی نوزی، روغ رمټ، سوړ سمخ، اریان دریان، خپ دپ، تالاترغا، خبرې اترې، زوړزپ، تورتم، کم کوز، ټپل ما ټپل، لنډو ګنډ، تس نس، سم دم، سوی لوی، مال هل.

2. دوهم صورت دا دی چې اصله کلمه وروسته او تابع یې د مخه راغلی وي په دې کښې زیات مثالونه داسې دي چې د متبوع د اول حرف په ځای په تابع کښې الف راغلی دی لکه: ادل، بدل، اخلی پخلی، ادوبدو، اریك شریك، اله ګوله، الغاو تلغاو، انې بانې، اغه دغه، ابغ نبغ او ځیني نورمثالونه چې هر یو په بېل بېل ډول دي دا دي:

تپه تیاره، ټپ ړوند، تم تری، اړو دوړ، الوول، جك جوړ.

## د الفاظو تکرار د یوې معنا د پاره:

**1-** کله یو لفظ د یوې معنا د پاره تکرار شي او په آخر کښې یې یوه نسبتي لاحقه هم راشي لکه: کوړ کوړی، دوړ دوړکه، بوړبوړکی، ګونګونی، غاړه غټی، غاړه غړی، توړ توړی، انډك سونډك، انډی کونډی، اکه پکه، ریز مریز.

**2-** کله د دغو مکررو الفاظو تر منځ (را، نا، په، تر، ا) راوړل کیږي لکه: پټ راپټ، مات رامات، ورك را ورك، تله راتله، تګ راتګ، پښن را پښن، ښه نا ښه، جوړ نا جوړ، روغ ناروغ، مبلمه نا مبلمه، ټېل نا ټپل، بلد نا بلد، تبر په تبر، هبر په هبر، شا په شا، خوا په خوا، څنګ په څنګ، سر په سر، لاس په لاس، تار په تار، خوله په خوله، لور په لور،

مخ په مخ، غېږ په غېږ، خوله تر خوله، لاس پر لاس، مخامخ، شواشو، دبادب.

## دکلماتو د ترکیب معنوي او لفظي حالتونه

درست کلمات عموماً دوه حالته لري: يو لفظي حالت دی او بل معنوي حالت.

دا دواړه حالتونه که څه هم تر ډېرې اندازې په تېرو بحثو نو کښې معلوم شول مگر په دې ځای کښې يو څه زيات وضاحت ورکول غواړو.

لفظي حالت: دوه کلمې چې سره يو ځای کيږي او پيوستيږي د لفظي حالت په اعتبار دوه صورته لري يو دا چې دواړه کلمې جلا جلا حيثيت لري او هره يوه بېل بېل کار اجرا کوي. مثلاً (تور قلم، د سليم کتاب) په دې دواړو ترکيبو کښې دواړه اجزا سره بېل بېل دي او هره کلمه په مستقل ډول خپله معنا ورکوي. داسې نه ده چې د دواړو له پيوستولو څخه کومه بله معنا راوتلې ده. دې قسم ته مونږ نحوي ترکيب وايو.

پر نحوي ترکيب کښې تش د کلمو له موقعيت څخه بحث کيږي چې يوه کلمه څه مقام لري يعنی فاعل باله شي، که مفعول که فعل او که بل څه په دې لحاظ دغسې ترکيب ناقص کلام هم بولي ځکه چې دوه کلمې يکښې سره يو ځای شوي دي مگر خبر يې لا معلوم نه دی، او که داسې ووايو چې (د سليم کتاب ورك شو) په دې صورت کښې پوره او کامل کلام بلل کيږي، بل صورت يې دا دی چې دواړه کلمې جلا جلا حيثيت

ونه لري بلکې د يوې کلمې حکم يې موندلی وي او په جمله کښې ورته يو شی يا فاعل يا مفعول او يا فعل ويل کيږي. دې قسم ته غالباً صرفي ترکيب وايو.

په دې کتاب کښې مخکښې بيان شوي ترکيبات ټول په دې قسم کښې داخل دي، مثلاً په دې جملو کښې (سليم پر هر پاڼه راوړه – کريم سرې مچۍ وچيچه) (پر هر پاڼه) مفعول او (سرې مچۍ) فاعل بلل کيږي چې په دې وجه د يوې کلمې حکم لري او کلموي ترکيب هم ورته ويلای شو. په مصادرو کښې هم دغه دوه قسمه ترکيبو نه ليدل کيږي لکه:

لاس وهل چې او لـه کلمه پکښې مفعول بالـه شي او نحوي تجزيه پکښې کېدای شي، مگر په ټك وهل کښې دغه بېلتون نه کيږي يعنې (ټك" ته مفعول نشو ويلای بلکې "ټك وهل" ټول فعل دی او مفعول به يې کومه بله کلمه وی لکه ميخ ټك وهل– په مصادرو کښې دا فرق ډېر مهم دی ځکه چې دا فعالو په اشتقاق کښې هم بيا ډېر فرق کوي، او د اول قسم څخه يو ډول او له دوهم قسم څخه بل ډول اشتقاقيږي مثلا لـه لاس وهل څخه ماضی مطلق لاس وواهه او له ټك وهل څخه (ټك واهه) راځي.

**معنوي حالت:** د معنوي حالت له مخه د پښتو ترکيبونه په بل راز دي او دلته بيا لفظي حالت ته نه کتل کيږي، له معنوي حالت څخه مقصد د ترکيباتو معنوي رنگونه دي چې په يو ځای کښې تقريباً حقيقي او اصلي معنا ورکوي او په بل ځايکښې مجازي او کنايي– دا بحث که څه هم ډېر مهم دی او ښايي چې يو مستقل کتاب پرې وليکل شي مگر د

وخت د لړوالي لـه کبلـه د زيـات بحث موقـع پـه لاس نـشته خـو څـه نـه څـه اشاره به ورته وکړو.

په مفردو او بسيطو کلمو کښـی هـم دغـه معنـوی فرقونـه شـته، مـثلاً زمری چې د حقيقي معنا په اعتبار د يو حيوان نـوم دی او کـه د يـو سـړي د پاره استعمال شي نو دا يې مجازي معنـا ده ، پـه مجـازي معنـا کښـی څـه مـشابهت او نـسبت ضـرور وي او قرينـه هـم غـواړي. کـه څـوك چـا تـه ووايـي (چـې هلـه زمريـه! دا کـار وکـړه!) نـو د کـار کولـو لـه امـر څخـه معلوميږي چې دلته مجازي معنا مطلب ده ولې چې حقيقي زمري ته خو څوك د کار کولو نه وايي يا مثلاً دا چې "سترګه را ختلې ده" دلته هم لـه سترګې څخه مجازاً نمر مطلب دی ولې چې حقيقي ستر ګې تـه خـو د را ختلو نسبت نه کيـږي. اوس بـه راشـو مرکبـو کلمـو تـه، مـرکبې کلمـې هـم دغـه معنـوي خـصوصيتو نـه لـري او دا کلمـې پـه پښتـو کښـی ډېـرې دي مثلاً د "زړه توربدل" اصلي او حقيقي معنـا متروکـه ده او مجـازاً پـه زړه بدېدلو کښې استعماليږي لکه چې وايـي " لـه حميـد څخـه مـې زړه تـور شو). په دی مثال کښـی غالباً د تور والي په نسبت کښې چې زړه ته شوی دی مجاز راغلی دی او دې ته په عربی کښـی عقلـي مجـاز وايـي. داسـې مثالونه پـه پښتـو کښـی زيـات پيـدا کيـږي خـصوصاً ځينـی مـصدرونه او اسما په دغسې ترکيبـاتو او معنـوي خـصوصياتو کښـې د جوهريت مقـام لري او ښايي چې سړی ورته جوهري مصدرونه او نومونه ووايي. وروسته مونـږ ځينـي دغـسې مـصدرونه او نومونـه لـه خپلـو ترکيبـاتو او معنـوي رنګونو سره ښيو:

## مصدرونه:

**1-** (وهل) دا مصدر په ډېرو ترکیباتو کښې استعمالیږي چې اکثر مختلفې معناوې افاده کوي، مثالونه يې دا دي : لاس وهل، ګوتې وهل، جل وهل، جك وهل، بډې وهل، څړيکې وهل، زړه وهل، لار وهل، ډغرې وهل، رمباړی وهل، ناري وهل، رلۍ وهل، چينجو وهل، بزووهل، شخو نډوهل، شپېلۍ وهل، غوپه وهل، ککړې وهل، ګونده وهل، مړانی وهل، تندی وهل، سترګه وهل، ستن وهل، رګ وهل، پټکی وهل، لنګ وهل ، ټوپ وهل، پلتۍ وهل، جاج وهل، تلی وهل ، څنګ وهل، ميخ وهل، ټك وهل، پورې وهل، ټېل وهل، ختې وهل، پړك وهل، څنډوهل، بډ وهل، څپ وهل.

**2-** (اچول) لاس اچول، ډډه اچول، زړه اچول، انګتې اچول، تار اچول، پرده اچول، اړم اچول، ټال اچول، اچار اچول، پال اچول، ډاډه اچول، بچي اچول.

**3-** (لګول) لاس لګول، شالګول، ډډه لګول، زړه لګېدل، پته لګول، اور لګول، اړم لګول، مال لګول، خوله لګول، لرګی لګول، اوبه لګول ، شالګېدل، اړخ لګول.

**4-** (تړل) زړه تړل، خوله تړل.

**5-** (خوړل) زړه خوړل، ټکرې خوړل، بډې خوړل، قسم خوړل، سر خوړل، ټال خوړل، هوا خوړل، ګولۍ خوړل.

**6-** (اخستل) اور اخستل، په سر اخستل، بډې اخستل، لاس اخستل، پښې اخستل، بدې ورځې اخستل.

نومونـه: ځینـی د ظاهري شيانو نومونـه هـم د کلمـاتو پـه ترکيـب او د مختلفو معنا ګانو په څرګندولو کښې زيات تاثير لري او ډېر ترکيبات او جلا جلا معنـا ګـانې ځـنې معلوميـږي. دغـسې نومونـه يـو جـوهري خصوصيت لري چې د خپلې معنا په قوت ور څخه ډېر ترکيبات زئيـږي. دا ډول نومونه زيات انساني اندامونه دي چې يو څو مثالونه يې دا دي:

**1-** (زړه): دا نـوم د ډېـر و کلمـاتو د جوړولـو د پـاره د اصـل او جذر درجه لري او يوه لړۍ کلمې ورڅخه جوړيږي لکه:

الـف : مـصدرونه: زړه کـول، زړه نيـول، زړه ټينګـول، زړه ماتېـدل، زړه چـاودل، زړه سـاتل، زړه وهـل، زړه تـړل، زړه کتـل، زړه خـوړل، زړه وړل، زړه ايستـل، زړه ټولـول، زړه لويـدل، زړه ښويـدل، زړه وتـل، زړه وخکـل، زړه ختل، زړه بايلل، زړه تشول، زړه خوږېدل، زړه درېېدل، زړه سړول، زړه سول، زړه بدول، زړه خړيدل، زړه ټکيدل، زړه بدېدل، زړه ورانېدل، زړه خوربـدل، زړه خوړينبـدل، زړه سـپينېدل، زړه کرېـدل، زړه شـين کېدل، زړه ربړېدل، زړه توربدل، زړه پړسول، زړه اچول، زړه تـه لوېدل ، زړه بد بد کېدل، زړه خولې ته راتلل.

ب : نومونــه او صــفات: زړه ور، زړه ورتيـا ، زړورتــوب، بــې زړه، زړوري، شـين زړه، زړه سوی، زړه سواندی، زړګی، زړه سر، زړه ټوټه، زړه بدی.

**2-** (ينـه) ينـه نيـول، ينـې رااخسـتل، ينـې خرل، ينـې غزول، ينـې ارته، له ينو نه اچول.

**3-** (خوله) خوله نیول، خوله لګول، خوله ماتول، خوله ور، بې خولې، لوی خولی، بې خولې توب.
**4-** (سترګه) سترګې سپینېدل، سترګه وهل، سترګې وتل، بې سترګو، سترګه ور، سترګو رپ، کلک سترګی، خړ سترګی، کوږ سترګی، سترګک، سپین سترګې.
**5-** (ژبه) ژبه کول، ژبه ماتول، ژبه ور، بې ژبې، بې ژب توب.
**6-** (غاړه) غاړه بندېدل، غاړه خلاصېدل، غاړه غړول، غاړه کېښودل، غاړه نیول، غاړه کول، غاړه وښکل، غاړه اچول، اوچته غاړه ورل، غاړه غړۍ ورتلل، تر غاړې کېدل، تر غاړه وتل، غاړې کول، غندل غاړی، لوب غاړی، سندر غاړی، رنځور غاړی، اوږد غاړی، غاړه کۍ، غړوندی، غړانګه، پسته غاړه، جګه غاړه، د کمیس غاړه، د سیند غاړه، د غره غاړه او نور.
**7-** (مخ) مخ وهل، مخ کول، مخه ښه کول، مخه نیول، پر مخ تلل، مخور، مخوریز، مخامخ.
**8-** (سر) سرنیول، سرته رسیدل، سر خوړل، سرکول، په سرختل، سرتلل، سر خوږول، سرګرځول، سر لګول، سر سرتورول، سر په سرکېدل، سرټرونی، سر تور، سر په سر (مساوي).
**9-** (غوږ) غوږ نیول، غوږ ایښوول، غوږ نه ړیول، غوږ ور، غوږین، غوږوالۍ، غوږۍ، غوږو، لوی غوږی، سپر غوږی، تور غوږی.

**10-** (لاس) **لاس لګـول**، لاس وهـل، **لاس اخـستل**، لاس پورتـه کـول، لاس ورکـول، لاس رسـيدل، لاس کښـدل، لاس پـورې کـول، لاس وينځـل، لاس نيوه، سمد لاسه، کيڼ لاسی او نور.

کتاب تمام شو

## د مولف نور آثار

| شماره | د کتاب ب نوم | کال هـ.ش | چاپ یا ناچاپ |
|---|---|---|---|
| 1 | پښتنی تور سرې | 1318 | نا چاپ |
| 2 | پښتو ادبیات – رساله | 1318 | په کابل کالنۍ کښېې چاپ شوې ده . |
| .3 | د مینو هینداره (ترجمه) | 1320 | نا چاپ |
| .4 | پښتو نثر | 1320 | په کابل کالنۍ کښېې چاپ شوی دی |
| .5 | مومند عبد الحمید | 1320 | نا چاپ |
| .6 | پښتانه شعرا دوهم ټوك | 1321 | چاپ شوی دی |
| .7 | پښتو کلی شپږم سمستر (ګرامر) | 1322 | چاپ شوی دی |
| .8 | د معارف د دریم ټولګي قرا ئت | 1323 | چاپ شوی دي (ترجمه) |
| .9 | خوږې قصې | 1321 | نا چاپ. |
| .10 | د پښتو د ادب تاریخ | 1323 | چاپ شوی دی |
| .11 | د پښتو لومړی لیار ښوونکی (ګرامر) | 1324 | چاپ شوی دی |
| .12 | د ژوند وظیفې ترجمه | 1324 | نا چاپ |
| .13 | د معارف د شپږم دینیات ترجمه | 1323 | پـه کابـل کانـۍ کښــې چا شوی ده. |
| .14 | د پښتو ادب درې | 1322 | |

| شماره | د کتاب ب نوم | کال هـ.ش | چاپ یا ناچاپ |
| --- | --- | --- | --- |
| 15 | د پښتو د اشعارو اقسام – رساله | 1323 | نا چاپ |
| 16 | د پښتو او سانسګريت ګرامری نزديوالی رساله | 1324 | په کابل کالنۍ کښې چاپ شوی ده. |
| 17 | د پښتو اشتقاقونه او ترکيبونه | 1324 | چاپ |
| 18 | ځلاندې پلوشې | 1324 | ناچاپ |
| 19 | د پښتو لوی ګرامر په فارسي | | چاپیږي |
| 20 | د پښتو او سانسګريت لغوی نزديوالی رساله | 1326 | په کابل کالنۍ کښې چاپ شوې ده |
| 21 | د پښتو ننني ليکوال | 1319 | په کابل کلنۍ کښې چاپ شوې ده |
| 22 | د جلال الدين رومي تذکره – ترجمه | 1318 | په اتحاد مشرقی کې نشر شوې ده |
| 23 | افغانها و آزادې هند – په پښتو او فارسی | 1327 | |

# د لیکوال د دي کتاب له چاپ څخه وروسته د نورو آثارو فهرست

| شماره | د کتاب ب نوم | کال هـ.ش | چاپ یا ناچاپ |
|---|---|---|---|
| 24 | د خوشحال خان بازنامه | 1332 | چاپ |
| 25 | د معارف د دریم ټولګي دینیات | | څو ځله چاپ |
| 26 | د معارف د دویم ټولګي پښتو قرائت | | څو ځله چاپ |
| 27 | د معارف د دولسم ټولګي پښتو | 1345 | څو ځله چاپ |
| 28 | د معارف د پنځم ټولګي پښتو قرائت | | څو ځله چاپ |
| 29 | د پښتو قصي | 1331 | چاپ |
| 30 | د پښتنو مجاهدي | 1330 | چاپ |
| 31 | د پښتنو مجاهدي | 1331 | چاپ |
| 32 | پښتون یار | 1331 | چاپ |
| 33 | د پښتو مصدرونو لاربښود | 1344 | چاپ |
| 34 | د هند سفر | 1334 | چاپ |
| 35 | د ژوند سندره | 1330 | چاپ |
| 36 | د پښتونخوا پېښي | 1334 | |

| 37 | ژبښودنه | 1341 | چاپ |
| --- | --- | --- | --- |
| 38 | د پښتو عروض | 1344 | چاپ |
| 39 | طب نامه | 1344 | چاپ |
| شماره | د کتاب ب نوم | کال هـ.ش | چاپ یا ناچاپ |
| 40 | تاریخچه ادب پشتو | 1333 | چاپ کابل کلنۍ |
| 41 | سوري شیرشاه (شیرشاه سوري) | 1334 | چاپ |
| 42 | د فراه پېژندنه | 1326 | چاپ |
| 43 | د علی خان پېژندنه | 1336 | چاپ |
| 44 | د پښتو قلمي نسخې | 1347 | چاپ |
| 45 | د پښتو پېژندنه | 1356 | چاپ |
| 46 | د ا لماتا سفر | 1351 | چاپ |
| 47 | د آریانا دایرۍ المعارف | 1356 | چاپ |
| 48 | د پښتو قلمي نسخو د څېړنې لارښود | 1347 | چاپ |
| 49 | د قطغن سفر | 1330 | چاپ |
| 50 | پښتني لارښود | 1365 | چاپ |
| 51 | روښان ستوری | 1366 | چاپ |
| 52 | نومیالي پوهان او غازیان | 1367 | چاپ |
| 53 | د پښتو تاریخي سیمینار | 1366 | چاپ |
| 54 | د پښتو نثر هینداره | 1342 | 1372 چاپ |
| 55 | نوې څېړنه | 1358 | چاپ |
| 56 | ادبي او تاریخي سمونې | 1371 | چاپ |

| 57 | د پښتو ادبي مکتبونه | 1368 | چاپ |
|---|---|---|---|
| 58 | ادبي ليکونه | 1373 | چاپ |
| 59 | د مهتمم ژوند | 1367 | چاپ |
| 60 | د ننګرهار ننداره | (1328) | چاپ 1374 |
| 61 | لرغونې پښتو | 1373 | چاپ |

| شماره | د کتاب ب نوم | کال هـ.ش | چاپ یا ناچاپ |
| --- | --- | --- | --- |
| 62 | د ژوند پلوشي | 1374 | چاپ |
| 63 | نوميالي شاعران | 1370 | چاپ |
| 64 | خوږې وږمې | 1376 | چاپ |
| 65 | د ښکلا وږمه | 1376 | چاپ |
| 66 | د ژوند پلوشې دويم ټوك | 1360 | ناچاپ |
| 67 | په هند کې پښتو کتابونه | 1359<br>1360 | |
| 68 | خپلواك ژوند | 1360 | |
| 69 | نړۍ وال كانفرانسونه | 1360 | |
| 70 | د شوروي سفر | 1336 | چاپ |
| 71 | د مصر سفر | 1337 | چاپ |
| 72 | زما ژوند او هلې ځلې | 1374 | ناچاپ |
| 73 | نوې کتنه | | ناچاپ |
| 74 | کره کتنه (تاریخي چارې) | | ناچاپ |
| 75 | د هېواد ننداري | 1358 | |
| 76 | د زلمو وظيفې | | |
| 77 | د ربنتين د ژوند پېښې | 1377 | ناچاپ |
| 78 | د پوهاند ربنتين مرکې | 1377 | ناچاپ |
| 79 | د بدخشان ننداره | | چاپ |
| 80 | د الينګار او اليشنګ ننداره | | چاپ |
| 81 | د خوست ليدنه | | چاپ |
| 82 | د عشق آباد سفر | | چاپ |

| شماره | د کتاب ب نوم | کال هـ.ش | چاپ یا ناچاپ |
|---|---|---|---|
| 83 | انوك اردن | | چاپ |
| 84 | نوی ژوند | 1330 | چاپ |
| 85 | د پښتونستان واقعات (پېښې) | 1330 | چاپ |
| 86 | د پښتو ادبياتو تاريخ | 1343 | چاپ 1346 |
| 87 | پیاوړي شاعران | 1372 | چاپ |
| 88 | وزم پوهنه | | |
| 89 | پښتو ګرامر اول جز | 1327 | چاپ |
| 90 | پښتو ګرامر دويم جز | 1370 | چاپ |
| 91 | پښتو ګرامر اول او دويم جز (ژباړن هاشمي) | 1372 | چاپ |
| 92 | د اشعارو ډولونه | 1374 | چاپ |
| 93 | د جلال آباد تګ راتګ | 1365 | چاپ |